# عمومي اګرانوميکي لارې چارې

## د ترويج مامورينو لپاره په ساحه کې کاريدونکی لارښود کتاب



USAID | AFGHANISTAN

د امریکا دولس لخوا

ALTERNATIVE DEVELOPMENT PROGRAM—EASTERN REGION ADP/E

د کرنې، اوبولګولو
او مالدارۍ وزارت

# AGRONOMIC PRACTICES
# اګرانوميکي (د نبات او چاپيريال ترمنځ اړيکې) لارې چارې

Prepared by
USAID's Alternative Development Program – Eastern Region
ترتيب او جوړونه: دامريکا د متحده ايالتونود نړيوالې پرمختيايي ادارې د ختيزې سيمې دمتبادل پرمختګ پروګرام

These training materials have been made possible by the generous support of the American People through the United Sates Agency for International Development (USAID). The contents of this document are the sole responsibility of the authors and do not necessarily reflect the views of USAID, The United States Government or Development Alternatives, Inc.

دا روزنيز مواد د امريکا دمتحده ايالتونو دنړيوالې پرمختيايي ادارې له لارې د امريکا دخلکو د پراخې مرستې په وسيله جوړ شوي دي . ددې کتاب د ټولو محتوياتو مسؤليت يواځې او يواځې د کتاب دليکوالانو پر غاړه دی او په هيڅ ډول د **USAID**، دامريکا دحکومت او د **DAI** د کمپنۍ د نظر څرګندوی نه دي.

# سریزه

د ترویج کارکوونکي په کرنیزې ودې کې، چې په عمومي ډول پر پرمختګ او وده مستقیم اغېز لري، مهم رول لري. د ترویج کارکوونکی د بزګرانو او حکومت تر منځ داړیکو تر ټولو لمړنی پل او همدارنګه په ډېرو حالاتو کې بزګرانو ته دتخنیکي پوهې دورکړې تر ټولو عمده او مهمه مرجع ګڼل کیږي

نن سبا د تولید تکنالوژي په دوامدار ډول دپرمختګ په حال کې ده او همدا تکنالوژي په نورو هېوادونو کې بزګرانو ته دا وړتیا ورکوي چې له کمې ځمکې څخه ډېر او دښه کیفیت لرونکی حاصل ترلاسه کړي او په پای کې خپل تولیدات په اغېزمنه توګه په بازار کې په لوړو بیو وپلوري. دهمدې دلایلو پر بنسټ افغان بزګران دې ته اړتیا لري چې نوموړو عصري تکنالوژۍ ته لاس رسی پیدا کړي تر څو وکولی ش ي چې د نورو هېوادونو له تولیدوونکو سره سیالي وکړي. ددې لپاره چې دترویج کارکوونکي وکولی شي دغې ننګونې ته ځواب ورکړي نو باید د تخنیکي ظرفیت او وړتیا او د خلکو سره دښواړیکو ساتلو وړتیا لرونکي اوسي او دافغانستان پرمختګ ته د زړه له تله ژمن وي

د اګرانومیکي ښوو نو او لاروچارو په ساحه کې کاریدونکی دا لارښود کتاب پر ټولو هغهو اړینو مفاهیمو مشتمل دی چې دترویج کارکوونکي ورته اړتیا لري تر څو له بزګرانو سره د حاصلاتو د اندازې او کیفیت په لوړولو او د بازارموندنې داغېزمنو حلقو جوړولو په برخه کې مرستې وکړي . دا لارښود کتاب د تولید له پلان څخه نیولې بیا تر بازارموندنې پورې ټولې موضوع ګانې روښانه کوي. همدارنګه په دې کتاب کې د خاورې د حاصلخیزۍ، اوبه خور او دنباتاتو ساتلو په هکله ارزښتناکه بحثونه موجود دي

مونږ تاسې ته بلنه درکوو چې دیوې داسې تاریخي پروژې یوه برخه شئ چې له مخې یې د افغانستان دودیز کرنیز سیستم د نوو کرنیزو لارو چارو په خپلولو او عملي کولو سره په یو عصري کرنیز سیستم بدل کړو، له بزګرانو سره مرسته وکړو چې پر بازار ولاړ اقتصاد کې بریالیتوبونه تر لاسه کړي او ددې ټولو نه مهمه دا چې کرنه د یو کاروبار په ډول خپله کړي. ددې ټولو موخو ترلاسه کولو لپاره د بزګرانو او د ترویج دمامورینو ترمنځ د داسې نژدې اړیکو منځ ته راتلو ته اړتیا ده چې په کې مونږ، دترویج مامورین، د بزګرانو زړونو ته د خبرو له لارې نه، بلکه هغوی ته دعملي لارښوونو او زده کړو له لارې نږدې شو.

دا لارښود کتاب دهغو مرستو او موادو دسلسلې یوه برخه ده چې د ختیزې سیمې دمتبادل پرمختګ پروګرام په ملاتړ او مرسته چمتو شوي دي

محمد حسین صافی، د ننګرهار د کرنې، اوبولګولو او مالدارۍ ریس

محمد اسمعیل دولتزی، د لغمان د کرنې، اوبولګولو او مالدارۍ ریس

الحاج محمد محصل، د کنړ د کرنې، اوبولګولو او مالدارۍ ریس

# لړلیک

# 1. آبیاری اود فصل د اوبونی تنظیم

## 1.1 سـریزه

یو سالم نبات ۸۵-۷۵ فیصده پوری د اوبو څخه تشکیل شوې وي، چه د نبات د حیاتی فعالیتونو لپاره پکارېږي لکه فوتوسنتیزیا ضیایی ترکیب ، مقاومت ، سختوالی ، غذایی او قندی موادو انتقال د نبات نورو برخو ته . کله چه بوټی په ابتدا کی په خاوره کی ځای په ځای شوی وی ، نو ډیرو اوبو ته ضرورت لري تر څو د ریشو سیستم یې ژرپه وده پیل وکړي. دا خاصتاً د ځوانو بوزغلیو اوبوټو لپاره چه د انتقال وړ وی اهمیت لري.

عموماً د ودی د موسم په جریان کی سبزیجات په اونی کی ۲.۵ ته تر ۵ سانتی اوبو ته د باران او یا د آبیاری په شکل ضرورت لري چه دا فرق د خاوری د ډول او اقلیم پوری اړه لري . په شرقی زون کی د بزګرانو لپاره مشکله ده چه وپوهیږي چه هغوی فصل ته څومره اوبه ورعلاوه کړی کله چه د چرو له لاری او یای یی د سیل یا سیلاب په شکل اوبه ورکوي . د اوبو ورکولو د تقسیم اوقا ت او سیستم او طریقو په باره کی ډیر لږ معلومات شته. بزګران د خپلی تجربی څخه کار اخلي . یوه عمومی قاعده داده چه په یخ موسم کی ۷ - ۱۰ ورځو وروسته اوبه ورکړل شي او په ګرم موسم کی دا اندازه بیا زیاتیږي ( هر دوه یا دری ورځی وروسته ). ددی بزګرانو پتي اکثراً داسی وي یا ډیر زیاتی اوبه لری او یا ډیر کمي چه نشی کولای د ښه کیفیت تجارتی سبزیجات تولید کړي.

ددی لپاره چه بزګرانو ته د اوبو ورکولو د موثره طریقو په هکله مشوری ورکړ ئ، پراختیایی کارکوونکی باید د خاوری یا ځمکی – اوبو – او نبات ترمنځ په اړیکو باندی وپوهیږي. پدی فصل کی پراختیایی کارکوونکی د فصل د اوبو اړتیاوو به هکله معلومات حاصلوي . د نبات د ودی د مهمو مرحلو په هکله هم معلومات حاصلوي. داچه څنګه د ځمکی او خاوری فزیکی خواص په خاوره کی د اوبو په جریان او موجودیت باندی تاثیر کوي او بالاخره وبه پوهیږي چه څنګه د معلوماتو به رڼار کی د اوبو ورکولو په هکله تصمیمونه ونیسی . هغوی به د اوبو ورکولو تخنیکونو او اداري په هکله یو څه اساسی معلومات تر لاسه کړي.




**1.1 شکل: د عامو سبزیجاتو لپاره د اوبو نسبتی اړتیاوی**

*Source: Adapted from various sources*

## 2.1 د فصل د اوبو اړتیا

هر نبات د اعظمی ودی لپاره یو ټاکلی اندازی اوبو ته ضرورت لري . ډیری زیاتی او یا هم ډیر کمی اوبه د نباتاتو حاصلات او کیفیت ښکته کوي. اساسی فکتورونه چه د فصل د اوبو اړتیا وی متاثره کوي په لاندی ډول دي:

- اقلیم: حرارت، باران، نسبی رطوبت او باد
- د فصل ډول: د وریجو او ګنیو په شان فصلونه نظر لوبیا او غنمو ته ډیرو اوبو ته ضرورت لري\
- د فصل د ودی مرحله : په عمومی توګه هغه فصلونه چه مکمله وده یی کړی وي ډیرو اوبو ته نظر هغو ته چه یو څه مخکی کرل شوی وي، ضرورت لري.

- د اوبو د سطحی ژوروالی : هغه فصلونه چه په هغه ځمکه کی کرل شوی وي چه د ځمکی د اوبو سطحه یی لوړه وي، لږو اوبو ته ضرورت لري، نظر هغی ځمکی ته چه هلته د اوبو س طحه ټیټه وی.
- میلان: هغه فصلونه چه په مایله سطحه کرل شوی وي ډیرو اوبو ته نظرو هغو ته چه په هوار ځمکه کرل شوي وي، ضرورت لري.
- د ځمکی تخلیه: هغه خاوری یا ځمکه چه شه زهکشی لري نسبتاً ډیرو اوبو ته ضرورت لري نظر و هغوته چه کمزوری زهکشی لری
- د حیوانی سری ډول او انډازه: په هره اندازه چه ښه تجزیه شوی سره ځمکی ته علاوه شي په هماغه اندازه کمو اوبو ته ضرورت دي

د فصل د اوبو ضرورت باید په محلی توګه وټاکل شي . ځینی پراختیایی خدماتو یو څه لارښوونی د بزګرانو لپاره ترتیب کړی چه په موثره اوبو ورکولو کی تری ګټه واخلی په شرقی زو ن کی داسی معلومات نشته په 6.1 شکل کی د هغو سبزیجاتو د اوبو ضرورتونه په مقایسوی ډول چه په شرقی زون کی کرل کیږي د هغو د اوبو مقدار چه د تخم څخه تر حاصله پوری په کار دی، د شرقی زون د بیلابیلو اقلیمونو لپاره اندازه شوی ندی.

اکثره سبزیجات لنډ عمر لري او په تکراری ډول اوبو ته ضرورت لري چه بشپړه وده وکړي . د لوړ کیفیت لرونکو سبزیجاتو لپاره باید په متوسطه اند ازه هم د اوبو فشار نه وي . د فشار یوه مرحله چه د اوبو ورکولو پواسطه تعقیب شي د مثال په توګه په کرم، هندوانو او ګازرو کی د چاودونو او درزونو سبب ګرځي. ګازری او نور ریشه یی نباتات د ریشو په ساحه کی نظر نورو ته کافی رطوبت ته ضرورت لري. د بزګرانو لپاره دا مهمه ده چه د اوبو ورکولو په اساسی او مهم وختونو باندی وپوهیږي تر څو د اوبو څخه ښه او اغیزمنه استفاده وکړي، خصوصاً په هغو ځایو کی چه اوبه کمی دي . په عمومی توګه اوبو ته په لاندی حالاتو کی ډیر زیات ضرورت وي:

> د انتخاب شوو سبزیجاتو لپاره د اوبو ورکولو اساسی او مهمی مرحلی
> - د سریا ګل تشکیل: براکولي، کرم، ګلپی، کاهو
> - د ګل نیول، د میوی تشکیل: تور بانجان، رومیان، بادرنګ، ختکی، هندوانی
> - پلی لرونکی: لوبیا، نخود، لیرو
> - د ریشی جوړیدل: ګازري
> - د غوټی تشکیلیدل: پیاز
> - د غوټی تشکیل او پیل کیدل: کچالو

- د ودی به لمړی څو اونیو کی
- د بزغلیو د کرلو څخه سمدلاسه وروسته
- د ګل او میوی نیولو په وخت کی

په ځینو فصلونو کی چه کله سبزی په پخیدو شي نو اوبه ورکول باید کم شي او یا بند شي . څنګه چه هندوانه پخیدو ته نژدی کیږي، د هندوانی خارجي پوستکی ښوی او هوار شکل نیسي چه ددی ښکارندویه دی چه اوبه ورکول باید کم شی. همدارنګه کله چه پیاز په پخیدوشی نو اوبه ورکول باید کم شي ترهغه چه څوکی یی وچی شي. که اوبو ته دوام ورکړل شي نو کیدای شی چه د ریشو د دوباره شنه کیدو سبب شي او ستونزي ر امنځ ته کړي. د کچالو لپاره د اوبو کافي زیرمه مهمه ده، د هغه وخت څخه چه غوټه یی لانه وی تشکیل شوی تر پخیدلو پوری. د غوټي د تشکیل څخه د مخه اوبه ورکول باعث ددی کیږي چه د نبات به سر د غوټو شمیر زیات شي. حال داچه ددی مرحلی څخه وروسته د کافی اوبو ساتل په پټی کی د غوټو اندازه او جسامت غټوي.

## 3.1 د خاوری فزیکی خواص

خاوره د منرالونو، هوا، اوبو او عضوی موادو څخه جوړه شوی ده . ددی برخو تناسب د ځمکی په فزیکی خاصیتونو ډیره اغیزه لري لکه د ځمکی جوړښت او ترکیب . دا خصوصیتونه په خپل وار سره د اوبو او هوا په جریان باندی تاثیر کوي او بالاخره د فصل په حاصلاتو باندی.

**د خاورې جوړښت او منفذونه**

د ځمکې جوړښت په حقیقت کې د خاورو د ذراتو ترتیب او یوځای کیدل دي چه د لویو ګروپو شکل ترې جوړیږي او د peds یا پیډ پنامه یادیږي. د خاورې د ذراتو تراکم لکه څنګه چه ذکر شو د ځمکې سره مرسته کوي چه د اوبو او باد د توږنې په مقابل کې مقاومت وښیي، او هم په خاورو کې د خالیګاوو د ساتلو لپاره ترڅو اوبه پکې جریان وکړي اهمیت لري او بالاخره د ځمکې د ښیرازۍ او حاصلخیزۍ لپاره مهم دی . دانه دار جوړښت د کروي شکله پیډونو د یوځای کیدو څخه تشکیل شوی چه اکثراً د عضوي موادو پواسطه یو د بل سره نښتي وي . د اکثره ځمکو پورتنی طبقه دانه دار خصوصیت لري خصوصاً هغه چه د عضوي موادو ډیر مقدار او لوړ بیالوژیکي فعالیت لري. غټ پیډونه د بلاکونو یا مخروطونو او یا صفحو به شکل د ځمکې په ښکتني طبقو کې لیدل کیږي . څنګه چه ځمکه پړسیږ ي (لمدیږي یا کنګل کیږ ي ) او بیا تقبض کوي (وچیږي) نو د خاورو د کتلو شاوخوا درزونه پیدا کیږي چه همدا د پیډونو د تشکیل سبب ګرځي . پیډونه د عضوي موادو، اوسپنې، اکسایډونو، خاورې یا کاربوناتونو د نښلیدو پواسطه سه نیول کیږي . د پیډونو تر منځ درزونه او کانالونه د اوبو، هوا او غذایي موادو د انتقال او د اوبو ژورې تخلیې لپاره ضروري وي . هغه خاوره چه میده وي نظر هغې ته چه زیږه او ناهمواره وي، قوي وي.




**2.1 شکل: د ځمکې د پیډونو او سوریو شکل**

د خاورې په خلاګانو کې ډیرې عملیې صورت نیسي . د خاورې جوړښت او ترکیب د خلاګانو په جسام ت، شکل او خپل منځي تماسونو او ارتباطاتو باندې اغیزه لري . هغه ځمکه چه زیږه او ناهواره جوړښت لري د غټو خلاګانو لرونکي وي ځکه چه غټ ذرات په سست شکل سره تنظیم شوي وي . هغه ځمکه چه میده ترکیب ولري هغه په کلک او محکم ډول سره ترتیب شوې وي او ډیرې کوچنې خلاګانې لري (6.2 شکل). لویې خلاګانې پدې ځمکو کې د aggregates تر منځ وي. څنګه چه د میده او هوار ترکیب خاورې هم کوچنې او غټې خلاګانې لري، نو په عمومي توګه نظر ناهمواره یا زیږو خاورو ته ډیر تخلخل لري . د ځمکې د ترکیب په خلاف، تخلخل او جوړښت ثابت نه وي او کیدی شي چه د ښې اداري، اوبو او کیمیاوي پروسو پواسطه بدلونه ومومي. که د اوږدې مودې لپاره په ځمکه کښت وشي نو مجموعي تخلخل کموي ځکه چه د ځمکې عضوي مواد کمیږي او غټ پیډونه ماتیږي او جلا کیږي . سطحي قشر او تخته کیدل تخلخل کموي او خاورې ته د اوبو د ننوتو څخه ممانعت کوي چه سطحي توږنه او جریان ډیروي. په عمومي توګه د خاورې د عضوي موادو سطحه لوړول، د خاورې سره د لاس وهنې کمول او د توږنې او تخته کیدلو کمول د ځمکې تخلخل والی ډیروي او جوړښت یې اصلاح کوي.

**د خاورې ترکیب**

په ځمکه کې د شګې ، خړې او مټینې خاورې نسبي مقدار دی چه د خلاګانو پ ه جسامت باندې چه د اوبو د ذخیرې لپاره وي شدید تاثیر کوي. د خاورې ترکیب د تیږو او منرالونو د فزیکي او کیمیاوي تجزیې نتیجه ده . څنګه چه تیږې او منرالونه مختلف ترکیبونه او جوړښتونه لري، په مختلفو اندازو سره تخریبیږي چه د خاورې په ترکیب کې فرقونه رامنځ ته کوي . د مثال په ډول، shale یا خاورینه تیږه چه په آسانۍ سره د هوا د حالاتو په مقابل کې تخریبیږي باعث ددې ګرځي چه ځمکه دمټینې خاورې څخه غني شي . حال دا چه ګرانایټ یا سخته تیږه ، چه په ډیر بطې ډول د جوی حالاتو پواسطه تخریبیږي، باعث د شګلنو او ناهواره ځمکو ګرځي. لکه څنګه چه د هوا اغیزې بطې وي نو له همدې کبله د ځمکې یا خاورې ترکیب نسبتاً ثابت وي او ځمکې د اداره کولو په واسطه نه بدلیږي هغه خاورې چه ډیره شګه ولري غټې خلاګانې لرې چه اوبه ترینه په ډیره چټکۍ تیریږي . د اوبو د ساتلو ظرفیت یې ښکته لیکن تخلیه او تهویه یې ښه وي . هغه ځمکې چه خاوره یا خړه ډیره ولري، ډیرې کوچنې کوچنې خلاګانې پکې وي او کولای شي چه ډیرې اوبه ذخیره کړي خو د ځمکې دننه د اوبو او هوا جریان بطې وي.

بزگران کولای شي چه د خپلی خاوری  ترکیب لابراتوار ته د سمپل د لیږلو په واسطه معلوم کړي     .  خو دا سهولت په خنیځ زون کی  د ډیرو کرونکو سره موېثر ندی ،په هرحال یو ساده تخنیک وجود لري چه په نورو ملکونو کی یی بزگران او پراختیایی کارکوونکی د ځمکی یا خاوری د ترکیب یا بافت د معلومولو لپاره تر سره کوی دا تخنیک د   feel  یا احساس د طریقی په نوم یادیږي او زده کول یی آسانه دي    .  تاسی واځی یو کوچنی مقدار خاوری ته ضرورت لر   ئ.  عملاً نتیجی یی په کافی اندازه دقیق وي او د نباتاتو د اداري  په تصمیم کی  تری استفاده کیدی شي.



**3.1 شکل: د خاوری احساسول**
*Source:  Unknown*

مخکی لدینه چه دا طریقه بزگرانو ته وروښایيء تاسی یی په پیژندل شوو خاورو باندی عملی کړ   ئ تر څو وپوهیږ ئ چه هره خاوره څ نگه احساسیږي   (6.3  شکل).  بیا کله چه یوه نامعلومه خاوره امتحانو ئ نو بیا کولای شی چه په دقیقه توگه یی تست کړ ئ او ترکیب یا بافت یی معلوم کړ   ئ.  عملا ددی طریقی نتیجی د لابراتوار د نتیجو سره یو شان وي    .  تاسی بیا کولای شی چه دا بزگرانو ته وروښایی تر څو  هغوئ د خپلو ځمکو ترکیب پری معلوم کړي.

ددی طریقی جریان په 6.4 شکل کی ښودل شوی دی. فقط مرحلی یی تعقیب کړئ. د خاوری د نمونی لپاره چه تاسی کوم خصوصیات بیانولی شی هغه به لاندی ډول دي:

- د پاشیدو شکل او ثبات
- احساس – زیږوالی ،نرموالی د اوړو په شان او سریښناکه
- د لمدی خاورې څخه د جوړی شوې پټی اوږدوالی

ددی په اساس چه ستاسی ځواب به هو وی او یا نه، تاسی د څو مراحلو څخه په چارت کی تیریږ     ئ تر څو ستاسی د خاوری د نمونی ترکیب یا بافت معلوم شي  .  دا مهمه ده چه په یاد ولر ئ چه د ځمکی بافت یا ترکیب یواځی د خاوری معدنیاتو ته راجع کیږي خصوصاً هغه ذرات یی چه د دوه ملی څخه ښکته وي.  هغه ریشی او ذرات چه د ۲ ملی څخه غټ وي باید ددی نمونی څخه وایستل شي.

چارت ځان سره پټیو ته راوړ  ئ او عملی یی کړ ئ. لږ څه خاوره راواخلی او لمده یی کړ  ئ او بیایی په لاس کی د توپ شکل ورکړ ئ. بیایی په کراره سره د خپلی غټی گوتی  او د شهادت گوتی پواسطه د ښتی غونډاری وغزوئ او هڅه وکړ ئ چه د یوی پټی شکل ونیسي  (هر وخت شاید ونشی کولای چه د پټی شکل ورکړ   ئ). څنگه چه کار کو   ئ تاسی خاوره احساس کړ   ئ.  لاندی جدول نه استفاده وکړ   ئ تر څو د خاوری ترکیبی کتگوری معلومه کړئ.

دا طریقه د یو کرونکي په ځم  که عملی کړ ئ.  په مختلف ژوروالی ورسره مرسته وکړ  ئ لکه ۱۰-۰سانتی، ۲۰-۱۰سانتی،  ۳۰-۲۰  سانتی.  وگورئ  چه د خاوری بافت د ژوروالی سره بدلون مومي او که نه     .  ددی تاثیرات داسی وی چه معلوم شی چه د اوبو ورکولو څخه وروسته د ریشو به ساحه کی څومره اوبه پاتی کیږي.  اوس چه تاسی  د خاوری په ډول پوه شو  ئ، دا مهمه ده چه وپوهیږ  ئ خاوره څومره اوبه د نبات د استفادی لپاره ساتلی شي.

## 4.1 شکل: د احساس د طریقی د جریان چارت، د خاوری د بافت د معلومولو لپاره






باقتی کتګوري: شګه (غونډاری نه



د بافت کتګوري: Loamy Sand (غونډاری جوړیږي، خو



د پټی جوړیدل: اوږدوالی خاوری په محتویاتو او معدنیاتو پوری اړه لری.

## 4.1 د خاوری اوبه

داسی تصور وکړئ چه خاوره د اسفنج په شان ده او داخلی سوري او خلاګانی یی هوا یا اوبه ساتي . څنګه چه ځمکی ته ډیری اوبه ورعلاوه کیږي د باران یا د اوبو ورکولو پواسطه، د سوریو څخه هوا خارج خوا ته ویستل کیږي. کله چه ټول سوری د اوبو پواسطه ډک شول، نو داسی ویل کیږي چه خاوره مشبوع شوی ده. که

After the soil is saturated, some of the water will drain from the larger pores and move below the root zone as a result of gravity. The soil is said to be at field capacity when the water stops draining freely. The remaining water is held in the soil by what are called capillary forces, forces of attraction between the water and the soil particles. As the water is




**5.1 شکل: د خمکې د اوبو بشودنه او د اوبو د ساتلو د ظرفیت تعریفونه**

*Source: McCauley, A. 2005. Soil and Water Management Modules. Module 1: Basic Soil Properties. MSU, Bozeman, MT*

تولې خاورې د اوبو د ساتلو عین ورتیا نه لري ځکه چه حرارت او خلاګانې یې مختلف شکلونه او جسامتونه لري. د خاورې د اوبو ساتلو ظرفیت د هغو د بافت، د عضوی موادو او تیرو اداری عملونو پورې اړه لري. په شړلنو او زیږو خاورو کی خلاګانی غټې وي او اوبه پکې داخل او خارج خواته آزادانه حرکت کوي نو ځکه د اوبو ساتلو ه ادا چه اوبه د نبات پذریعه استعماليږی دلته یوه نقطه چه هغه پاتې اوبه چه د خاورې دزراتو پواسطه م‌حکمې نیول کیږی خصوصاً د متینوخاوورویا زراتو پذریعه او نبات هغه اوبه نشی راویستلای، چه دی حالت ته د دایمی مړاویدنی نقطه ویل کیږی .که چیرې ابیاری یا د باران اوبه ورته مهیا نشی نو نبات به مړاوی او مری به .

هغه مقدار اوبه چه د خاورې پذریعه د فیلډ کپیستی او پرم‌ننت ویلتنګ پوینت تر منځ ساتل کیږی د نبات د لاس رسی اوبو په نامه یاديږی( ۶. ۵شکل ) .

تولې خاورې یو شان د اوبو د نیولو ظرفیت نلری اد ځکه چه خلاوی اوذرات فرق لری د شکل او جسامت له نظره.د اوبو ساتل یا نیول د خاورې د ترکیب ، د عضوی موادو موجودیت او د سا بقه کرهنیزو عملیاتو پورې ترل دی ، د زیږو ترکیب دوله خاورو کی اد چه لویی خلاوی او ذرات موجود وی نو اوبه ورڅخه په تیزی خارجیږی نو ځکه یی د اوبو د ساتنی ظرفیت ښکته وي . هغه فصلونه چه به دی دول ځمکو کی کرل کیږي باید به مکرر دول اوبه ورکړل شي . په درنو یا میده خاورو کی خلاګانی ډیر کوچنی وي او اوبه تری ژر نشي تخلیه کیدی نو له همدی کبله د اوبو ساتلو ظرفیت یی لوړ وي. خو د اوبو اکثره برخه دومره کلکه په ذراتو کی نیول شوی وي چه نباتاتو ته نه مهیا کیږي. اد دول خاورې کمزورې تهویه یا د هوا جریان لري او که تخلیه نه شي نو د نبا ت په وده منفی اغیزه کوي. Loamy خاوره په کافی جسامت سره خلاګانی لري چه د هوا او اوبو جریان ته مساعدی وي او نبات ته کافی اوبه ورکولای شي. د نبات د ودی لپاره اد تر تولو ښه خاوره ده.

**د اوبو ورکولو د کمزورې مهالویس نتیجې**

کمې اوبه ورکول د لاندې حالاتو باعث کیدی شي:

- حاصلات کمیږي او په بازار کی یی ارزښت راښکته کیږي
- جسامت او کیفیت یی راښکته کیږي

ډیرې اوبه دلاندی حالاتو باعث ګرځی:

- غیر ضروری تنبتی وده
- د ضروری اوبو ضایع کیدل او د ځمکی لاندی اوبو سره یو ځای کیدل
- د غذایی موادو منځل کیدل
- د تولیداتو خراب کیفیت او ښکته حاصلات
- نباتی ناروغی لکه د ریښی خوسا کیدل

## 5.1 د اوبو ورکولو مهالویش

اد هغه پروسه ده د کومې په ترڅ کی چه یو بزګر تصمی م نیسی چه کله او څومره اوبه باید فصل ته ورکړل شي. د اوبو لپاره د فصل د اړتیاوو اندازه کول نظر اقلیم او د فصل مرحلې ته یو څه مشکل کار دی.

په شرقی زون کی بزګران اد کار د خپلی تجربې او عمل په اساس کوي کله چه ځمکه وچه په نظر راشي، که په کانال کی اوبه وي، هغوی اوبه ورکوي. بزګران په خپلو فصلونو کی د فشار علامې ګوري لکه د پاڼی په

رنګ او زاویه کی بدلون راتلل، د پاڼی تاویدل . ځینی فصلونه لکه پنبه د رطوبت د فشار څرګندی نښی د ځآنه ښیي مګر نور فصلونه داسی نښي نه ښیی تر هغه چه مړاوي شي . سبزیجات په خاصه توګه د رطوبت فشار په مقابل کی ډیر حساس وي نو کله چه نښي نښانی موجودې شي، همیشه د حاصلاتو ضایع کیدل رامنځ ته کیږي.

په نورو هیوادونو کی بزګران مختلف تخنیکونه په کار اچوي تر څو د سبزیجاتو د تولید لپاره د اوبو ورکول تقسیم اوقات کړي. لکه د فصل مشاهده کول. ددی تخنیکونو څخه یو ېی ساده دی چه افغانی بزګران یی کولای شي چه زده یی کړي. دا د «احساسولو او ظاهری ښنی» طریقه ده چه د مخکینی «احساس» طریقی سره ورته والی لري. دا تر ټولو عامه طریقه ده چه کرونکی یی استعمالوي تر څو په پټیو کی د رطوبت اندازه وګوري . د خاوری نمونه د رمبی یا داسی کو می بلی آلی پواسطه اخیستل کیدی شي . خاوری یا ختی ته به ورغوي کی فشار ورکوئ او ظاهری شکل یی ګوری او بیا کولی شی چه د رطوبت په هکله یی اټکل وکړ ئ. 6.1 جدول کی د ختی یا خاوری احساسولو بیان شوی وي او په 6.6 شکل کی یی تاسی ته عکسونه درکړي تر څو تعبیر یی تصدیق شي.

کله چه فصلونه په او چتو بسترونو وکرل شي، نو نمونه باید د بستر څخه واخیستل شي او د اوبو د څیری یا چری څخه نمونی باید په مختلفو ژوروالو سره واخیستل شي . او د ریشو والا د نباتاتو لپاره باید د ۳۰ سانتی څخه په ډیر ژوروالی نمونه واخیستل شي . یوائی د ځمکی د سطحی پہ نمونو باور مه کو ئ. کیدی شی د ځمکی پورتنی څو سانتی متره وچ وی خو ښکته د ریشو په ساحه کی شاید کافی رطوبت وی او که اوبه ورکړئ نو شاید اوبه پری زیاتی شي.

ددی لپاره چه د ظاهری ښی او احساس د طریقی نتیجی تعبیر شي، تاسی باید مخکی تر مخکی د خپلی ځمکی په بافت باندی پوه شی. تاسی د عین نمونی پواسطه دواړه طریقه باید د نمونی خاوره لمده کړ ئ او د خاوری د رطوبت د معلومولو په طریقه کی تاسی هغی ته اوبه مه علاوه کو ئ. ځکه همدا اوبه یا رطوبت تاسی معلوموئ !!

د اکثره فصلونو لپاره چه کله موجودی اوبه د ٪۶۰-۴۰پوری وی نو بزګر بایډ اوبه ورکړي. که د ٪۲۵ څخه ښکته وي نو وده ودریږي.

| موجودی اوبه | زیړه (میده شګه یا Loamy) | نرم ډوله زیړه (Sandy Loam, Fine Sandy Loam) | متوسط (Sandy Clay Loam, Silt Loam) | نرم ډوله میده (Clay, Clay Loam and Silty Clay Loam) | عمومی یادونی |
|---|---|---|---|---|---|
| د ځمکی د ظرفیت نه زیات | کله چه د خاوری غونډاری په لاس کی وخوځول شي نو اوبه څرګندیږي | کله چه کښیکاږل شي نو آزادی اوبه تری خوشي کیږي | آزادی اوبه په فشار سره تری وځي | د ځمکي په سطحه آزادی اوبه تشکیلوي | په ځمکه کی اوبه ډیري وی او هوا تری نشی تیریدلای. |
| د ځمکی د ظرفیت سره برابری | که غونډاري ته فشار ورکړل شي نو په ځمکه آزاده اوبه نه څرګندیږي، مګر په لاس باندی لوند چاپ پاتی کیږي. | که غونډاري ته فشار ورکړل شي نو په ځمکه آزاده اوبه نه څرګندیږي، مګر په لاس باندی لوند چاپ پاتی کیږي. | که غونډاري ته فشار ورکړل شي نو په ځمکه آزاده اوبه نه څرګندیږي، مګر په لاس باندی لوند چاپ پاتی کیږي. | که غونډاري ته فشار ورکړل شي نو په ځمکه آزاده اوبه نه څرګندیږي، مګر په لاس باندی لوند چاپ پاتی کیږي. او امکان لري چه د ګوتو تر منځ تسمه شکله جوړښت جوړ شي. | د نبات لپاره ډېری اوبه او په کافی اندازه هوا |
| 75 % | میلان لری چه یو بل سره ونښلی، او د فشار لاندی یو ضعیف مایتدونکی غونډاری جوړ شي | یو کمزوری غونډاری جوړیږي چه په آسانی سره ماتیږي، نښلیږي نه | غونډاری تری جوړیږي او ډیر سریښناکه وی – یعنی په آسانی سره نښلي | خاوره ښویه احساسیږي او په آسانی سره تری پټی جوړیدی شي | په کافی اندازه هوا او اوبه او نبات ښه وده کوي |
| 50 % | شاید د فشار لاندی یو ضعیف مایتدونکی غونډاری جوړ شي | د فشار پواسطه غونډاری جوړیږي لیکن بیا جلا کیږي | غونډاري تری جوړیږي او د فشار لاندې په خفیف ډول سره نښلي | د فشار لاندی غونډاري کیږي، کله چه د ګوتو تر منځ فشار ورکړل شي نو د پټی شکل ته اوړی | د نبات لپاره یواځی په کافی اندازه اوبه |
| 25 % | وچ په نظر راځی او د فشار لاندی تری غونډاری نه جوړیږي | وچ په نظر راځی او د فشار لاندی تری غونډاری نه جوړیږي | یو څه ماتیدونکي وي خو د فشار لاندی سره نښلي | د فشار لاندی غونډاري کیږي، کله چه د ګوتو تر منځ فشار ورکړل شي نو د پټی شکل ته نه اوړی | د نبات وده ودریدلي ده |
| 0-25% د مړاوي کیدو نقطه | وچ، سست او دانه داره په ګوتو احساسیږي | وچ، سست او د ګوتو په منځ کی جریان کوي | د پودر په شکل وچ وي، ځینی وخت قشر پری تشکیل شوی وي خو په آسانی سره په پوډر بدلیږي | سخت وی، درزونه پکی وي او کله نا کله په سطحه باندی سستی پارچی وي | په شدید ډول اوبو ته ضرورت لري، نبات ژر له منځه ځي |

6.1 شکل: د خمکی د اوبو تعینول، د احساس او ظاهری بنی په طریقه




**6.1 شکل: د خاوری د ظاهری بنی عکسونه په پورته ذکر شوی طریقه کی**

## 6.1 د اوبو ورکولو طريقې

اکثره اوبه چه فصلونو ته په شرقي زون کې ورکول کيږی د سطحی اوبونی څخه حسابيږی. دا هغه اوبه دی چه د ځمکې د جاذبې په اساس جريان پيدا کوي. يا داچه ټوله ځمکه اوبه کيږي او يا داچه په ويالو او چرو کې جريان کوي. اوبه د غرونو څخه ځمکو ته د هغو کانالونو او ويالو د شبکې د لاری راوړل کيږی چه د ډيرو نسلونو د دهقانی په نتيجه کې جوړه شوي. اکثراً بزګران د ځمکې د سطحی څخه لاندی اوبو ته لاس رسي نلری نو ځکه په همدی اوبو باندی تکيه لری. په شرقي زون کې د څاڅکو او آب پاشی Sprinkler irrigation, drip irrigation د طريقو څخه کار نه اخيستل کيږي مګر په تجربوی ډول. پراختيايي کارکوونکی بايد بزګران د نوواو متبادلو طريقو څخه باخبره وساتی.

6.6.1 د سيل ځبسين اوبونی طريقه

لګن يا بسين د ځمکې هواری برخې دی چه د نريو پولو پواسطه احاطه شوې وي چه د اوبو څخه مخنيوی وکړی چه ورسره نژدی پټيو ته ولاړې نه شي. دا طريقه اکثره د شولو يا وريجو لپاره پکاريږی خو د دانه بابو، ونو او سبزيجاتو لپاره هم پکاريږی، خصوصاً د قوريو لپاره. د ريشو او غوټو لرونکو نباتاتو(ګازری،الوګانو،چغندرو) لپاره مناسبه طريقه نه ده. عموماً دا طريقه د هغو فصلونو لپاره سمه طريقه ده چه په ولاړو اوبو کې د ډير وخت لپاره پاتې کيدی شي(۱۲- ۲۴) ساعتو پوری.



**Figure 7.1: د بسين د اوبو ورکولو طريقه**

د بسينو شکل او اندازه د ځمکې د ميلان، د خاوری د ډول، د اوبو جريان، د ضرورت وړ ژوروالی يې او کرهنيزه طريقو پواسطه ټاکل کيږي. د پولو لوړوالی ددی پوری اړه لری چه څومره اوبه ورکول کيږی او پراخوالی يې بايد څومره وی چه اوبه تری تيرې نه شي.

ددی لپاره چه په مساوی او برابر ډول ريشو ته اوبه ورسيږی، نو د ځمکې سطحه بايد هواره او اوبه وکولای شی چه ټولی ساحی ته ورسيږي. داسی اټکل کيږي چه په دی طريقه باندی بزګران د اصل ضرورت په نسبت دوه چنده ډيرې اوبه ورکوي.

پولی د باران، سيل او د خلکو د تيريدو پواسطه توړل کيږي. موږکان د پولو په اړخونو کې سوري وکاږي. نو دا مهمه ده چه به منظمه توګه چيک شي او ترميم شی. د هر موسم څخه مخکی، بايد دا ځمکې وکتل شی چه هواری دی او که نه. لوړی او ژوری يې په دی وخت کی په آسانی سره معلوميږي او بايد هواری شي.

### د څيرو يا چرو شکله اوبه کول

څيری هغه موازی چينلونه دي چه د فصل د اوبه کولو په خاط ر اوبه انتقالوي. فصل معمولاً د څيرو تر منځ په پولو باندی کرل کيږي. په شرقي زون کې بزګران کله نا کله د څيرو په قاعده کی بزغلی کري کله چه موسم ګرم او وچ وي، خصوصاً کله چه د اوبو کموالی موجود وي.



**Figure 8.1: د ځیرو اوبه کول**

د ځیرو د لاری اوبه ورکول د ډیرو فصلونو لپاره مناسب دي، خصوصاً هغه فصلونه چه په قطارونو کی کرل کیږي او یا هغه فصلونه چه کله یی ساقه د اوبو پواسطه وپوښل شي تخریبیږي (رومیان، لوبیا، ریشه یی او غوټی لرونکی فصلونه، نور سبزیجات).

د ځمکی په اکثره ډولونو باندی ځیری جوړیدی شي . د اوبو ورکولو د نورو سطحی طریقو په شان، د ډیرو زیږو او شګلنو خاورو لپاره دا نه توصیه کیږي ځکه چه د اوبو ضایع کیدل پکی ډیریږي . هغه خاوری چه په آسانی سره قشر نیسي د ځیرو لپاره ښې مناسبی وي. ځکه چه اوبه د پولی په سر جریان نه پیدا کوي او پدی ترتیب په هغه خاوره چه نباتات وده کوي، ماتیدونکی پاتی کیږي.

د ځیرو اوږدوالی، شکل او فاصلی یی د طبیعی شرایطو پواسطه ټاکل کیږي لکه میلان، د خاوری ډول، او د اوبو موجوده اندازه. یو څه نور عوامل هم شاید د ځیرو د سیستم په دیزاین باندی اغیزه وکړي لکه د اوبو ژوروالی، زراعتی عملونه یا عادتونه، او د پټی اوږدوالی.

ځیری باید لږ تر لږه میلان ولري ترڅو اوبه په موثره توګه تخلیه او جریان وکړي.

د ځیری اوږدوالی اکثراً د پټی د اندازی له مخی ټاکل کیږي خو د خاوری ډول هم یو فکتور دی . هغه ځیری چه په شړلنه خاوره کی جوړیږي باید لنډې وي تر څو د اوبو د ضایع کیدو څخه مخکی لدینه چه د ځیری اخر ته ورسیږي، مخه ونیسي.

د ځیری شکل د خاوری د ډول او د اوبو د اندازی پواسطه ټاکل کیږي . په شګلنو خاورو کی اوبه په عمودی شکل په ډیری چټکۍ سره حرکت کوي نظر جانبی شکل ته. نری، ۷شکله ځیری د هغه ساحی د کمولو لپاره ښی دی چه اوبه تری ضایع کیږي . که څه هم شګلنی خاوری لږ ثبات لري او سقوط ته میلان لري، چه شاید د اوبو ورکولو موثریت کم کړي. په هغه ځمکه چه میده خاوره وي، د اوبو جانبی جریان ډیر وی او د نفوذ چټکوالی نظر شګلنو ځمکو ته ډیر کم وي . نو په همدی خاطر پراخه سطحی ځیری ښی وی تر څو د اوبو نفوذ تحریک کړي . په عمومی توګه څومره چه د اوبو اندازه ډیره وي په هماغه اندازه غټو ځیرو ته ضرورت وي تر څو جریان یی کنترول کړي.

د ځیری شکل د خاوری د ډول او هم د رواجی حالاتو پواسطه تر تاثیر لاندی راځي . د یو قانون په حیث د شګلنو ځمکو لپاره فاصله باید د ۶۰-۳۰ سانتی پوری وي، یعنی ۳۰ سانتی دِ غټو شګو لرونکو ځمکو لپاره او ۶۰ سانتی د میده شګو لپاره . په درندو یا مټینوکی فاصلی باید ۱۵۰-۷۵ سانتی د ځیرو تر منځی وي . اوبه هر ځیری ته د عمومی ویالی څخه د یوی دخولی دروازی له لاری ورځی . د اوبو د جریان د اندازی په مطابق کیدی شی چه څو چری په عین وخت کی او به شي. چیرته چه د اوبو کمبنت موجود وي، نو امکان لري چه د اوبو مقدار به متبادل ډول د ځیرو د اوبه کولو د لاری محدود کړو چه یوه یوه ځیره ترمنځ پریږدو.

د ځیرو په اخر کی د اوبو جریان یوی غټی تخلیه کوونکو ویالی سره یوځای کیږي او که دا کار په سمه توګه تر سره نه شي نو کیدی شی چه نبات د اوبو د تراکم په دلیل تخریب شي . د زهکشی یا تخلیی په سیستم کی کوچنیو نباتاتو ته اجازه ورکول کیږي چه وده وکړی تر څو د توږنی د عمل څخه مخه ونیول شي . د اوبو ډیر زیات اضافه کیدلو مخه داسی نیول کیدی شی چه کله د ځیری آخر ته اوبه ورسیږي نو د دخولی اوبو جریان کم شي.

د ځیرو سیستم باید په منظمه توګه وساتل شي . د اوبو ورکولو به جریان کی باید وکتل شي چه اوبه د ځیرو مقابل انجام ته رسیږي. داسی ځایونه باید ځیره کی نه وي چه اوبه پکی ډنډ پاتې شي . په پولو باندی باید اوبه راوانوړي. تخلیوی ویالی او کانالونه باید د مضره بوټو څخه پاک وساتل شي.

## 7.1 د آ بیاری تنظیم یا اداره

د اوبوونی اداره بل شی ندی مګر د وده کوونکو فصلونو لپاره یو مناسب چاپیریال برابرول دي . یعنی ځمکه ددی څخه ساتي چه ډیره وچه او یا دیره لمده شي . کله چه ځمکی ته ډیر زیاتی اوبه ورکړل شي نو د خ اوری تر منځ خالیګاوی ډکیږي او خاوره مشبوع کیږي . که چیری اوبه د خاوری به خلاګانو کی پاتی شی نو د نباتاتو ریشی د آکسیجن د نشتوالی له امله وژل کیږي چه دا حالت د water logging په نامه یادیږي. اکثره بزګران هغه وخت پوهیږي چه وخت ورڅخه تیر وی او دا حالت واقع شوې وی.

### 6.7.1 د اوبو ورکولو اساسی اصول

بهتره ده چه د سهار له خوا اوبه ورکړل شي تر څو د ورځی په جریان کی لږی اوبه د تبخیر د لاری ضایع شي . د اوبو ورکولو په جریان کی په کافی اندازه اوبه باید ځمکی ته ورکړل شي تر څو د ۲۰-۱۵ سانتتی پوری ځمکه لمده شي او که نباتات ریشوي وي نو ددی څخه هم زیات. د اوبو د ضرورت وړ مقدار د خاوری د طبیعت په اساس تغیر کوي. په کمه اندازه او په تکراری ډول په سطحي توګه ریشي تحریکوي چه باعث ددی کیږي چه نباتات د وچکالي په ورځو کی ډیره ضربه وګوري، خصوصاً که د ملچ یا د نباتی پوښونو څخه استفاده نه وي شوې. په هماغه اندازه چه ډیری لږی اوبه نباتاتو ته ضرر رسوي، ډیری زیاتی اوبه هم نباتاتو ته ضرر رسوي . د نبات ریشی د اکسیجن څخه محروموي.

> **د تجارتی سبزیجاتو په تولید کی د اوبو لګولو د ښی اداری اهمیت:**
>
> - د تیغی وهل او د نبات تثبیت اصلاح کوي
> - د بوزغلیو مړاوي کیدل کموي
> - د غذایی موادو جذب اصلاح کوي
> - په پټی کی د نباتاتو وده یو شان ساتي
> - د سبزیجاتو حاصلات ډیروي او کیفیت لوړوی
> - د بزګر منظم مشتریانو ته داډ ورکوي چه هغوی ته به ښه تولیدات تهیه کیږي

**د اوبو تقاضا کمول**

ټولی اوبه چه د سبزیجاتو پټی ته ورکول کیږي شاید نباتاتو ته د استفادی لپاره مهیا نه شي، خصوصاً که ځم که درنه خاوره ولري. د خاوری ذرات رطوبت کلک ساتي. که چیری د خاوری په ۳۰ سانتی کی ۱۲ سانتی اوبه وي نو شاید فصل ته تر ۳ سانتی پوری اوبه مهیا شي . که ځمکی ته ډیره توره خاوره چه عضوی مواد دی، ورعلاوه شي د موجودو اوبو مقدار ډیرولای شي . د توری خاوری نه علاوه په در نو خاورو کی د خالیګاوو د زیاتیدو سبب ګرځي، چه رطوبت ته اجازه ورکوي چه لاندی خوا ته تخلیه شي، نظر دی ته چه په سطحه پاتي شي او تری وبهیږي.

د شګلنو خاورو د اوبو د ساتلو ظرفیت هم د عضوی مادی په استعمال سره اصلاح کیږي . که څه هم په شګلنه خاوره کی اکثره اوبه نباتاتو ته مهیا کیږي . خو په چټکی سره تخلیه کیږي چه ریشي نشي کولای ورته ورسیږي . که توره خاوره یعنی عضوی مواد ځمکی ته علاوه شي نو د اوبو لپاره یو شي پیدا کیږي چه ور پوری ونښلي تر هغه چه نبات ورته ضرورت پیدا کوي.

د ملچ څخه استفاده بله زراعتی طریقه ده چه د اوبو د ضرورت وړ مقدار په کمولو کی مهم رول لري. د ملچ ۱۵-۲۰ سانتي پوښ د اوبو ضرورت نیمایی کولای شي داسي چه هرزه بوټي سوځي او د تبخیر عمل کموي . پخپله دا عضوی نباتات اوبه ساتی او د نبات شاوخوا رطوبت ډیروي . د تور پلاستیک ملچ اوبه ساتي او د نبات شاوخوا رطوبت ډیروي. د تور پلاستیک ملچ هم رطوبت ساتي، خو کیدی شي چه په ناګهانی تو ګه د ځمکی تودوخه لوړه بوځي خصوصاً په اوړي کی که د نورو پاڼو یا عضوی موادو پواسطه نه وی پوښل شوی وي.

په هغو ساحو کی چه ډیر لمر لري، سبزیجات مړاوی کیږي او د قسمی سیوری څخه ګټه اخیستلای شي . د سبزیجاتو په پټی کی میوه داری ونی په ۵ متره فاصلو باندی کرل کیږي . د یوی خوا نه سبزیجاتو لپاره سیوری برابروي اوله بلی خوانه د دریو نه تر ۵ کالو وروسته میوه ورکوي.

ځوان نباتات په خاص ډول د هوا او باد په مقابل کی حفاظت ته ضرورت لري. هغه هوا چه په نبات لګیږي، د پاڼو د سطحو څخه رطوبت وړي او باعث ددی کیږي چه نبات ډیرو اوبو ته ضرورت پیدا کړي . په هغو ساحو کی چه ډیر بادونه لګی د ریښو پواسطه د اوبو جذب نشي کولای چه د پاڼو غوښتل ته رسیدګی وکړي او نبات مړاوی کیږي. د باد په مقابل کی موقتی او یا دایمی خنډونه ایجادول دا فشار کمولی شي.

له اندازی ډیر اوبه ورکول

له حده زیاتی اوبه ورکول د ډیرو ستونزو باعث ګرزي چه اکثره یی هغه وخت لیدل کیږي چه ډیر ناوخته وي. کله چه د نبات ریښي د خاوری څخه ټولی اوبه جذبی نکړي شي او ډیری اوبه پاتی شي نو باعث ددی کیږي چه نبات ته آکسیجن قطع شي . دا حالت د water logging پنامه یادیږي چه شدت یی د ځمکی لاندی اوبو د سطحی، د خاوری بافت او جوړښت پوری اړه لري.

هغه اوبه چه پټی ته ورکول کیږي په خاوره کی نفوذ کوي چه ددی نفوذ چټکوالی د خاوری د بافت او جوړښت پوری اړه لري. د خاوری کمزوی جوړښت اکثره د اوبو د تراکم باعث کیږي. د خاوری جوړښت د ځمکی د تخته کیدو پواسطه لا خرابیږي . کله چه درانه ماشینونه په ځمکه استعمالیږي او یا کله چه په لمده ځمکه باندی قلبه تر سره کیږي نو د ځمکی په سر یوه کلکه طبقه چه plow pan پنامه یادیږي تشکیلیږي. اوبه او نباتي ریښی ددی کلکی طبقي څخه په ډیره مشکله تیریږي چه اوبه او ټینګښت د خاوری باعث د توقف د رشد کیږي.

د اوچتو بسترونو اوبه کول

بزګران عادت لري چه خپلی ځمکی د سیل یا سیلاب په شکل اوبه کړي . هغوی داریږي چه که چیری اوبه ځمکه په مکمل ډول پوښ نکړي، نو کیدی شي چه د فصل د ودی لپاره ناکافي وي . دا باعث ددی کیږي چه د اندازي نه ډیری اوبه ورکول کیږي . کله چه په اوچتو بسترونو باندی سبزیجات کرو، نو ضرور نه دي چه اوبه بستر پوښ کړي. اوبه د څیرې څخه د بستر اړخ ته به جانبي ډول حرکت کوي . تر هغه پوری چه اوبه په کافی اندازه ژوری وی او په هماغه ژوروالی کی د کلفی وخت لپاره پاتی شي، نو د ټول بستر د نباتی ریښو لپاره به کافی اوبه وي . د بستر پراخوالی او لوړوالی د فصل، موسم او د اوبو د موجودیت په اساس عیاریدلای شي. د مثال په توګه د منی او ژمی په موسم کی چه فصلونه په بارانی موسمونو کی وده کوي، نو بسترونه باید لږ تر ل ږه ۲۵ سانتی متره لوړ وي تر څو دا یقین حاصل شي چه د درنو بارانونو څخه وروسته په کافی اندازه تخلیه وجود لري . د پسرلي او اوړي د موسم لپاره، ټیټ بستر توصیه کیږي (۲۰-۱۵ سانتی).

د اوبو اداره یا تنظیم د لوړو بسترو په تولید کی مهمه ده . کله چه هوا ډیره ګرمه وي نو د تبخیر په ذریعه د اوبو ضایعات هم ډیروي. که څه هم د خاوری د رطوبت اندازه په ځمکه کی کافی وي، د ځمکی د سطحی او ښکتنیو طبقو تر منځ میلان شاید وجود ولري چه باعث ددی کیږي چه منحلی مالګی په خاوره کی پورته راشي او په سطحه باندی ذخیره شي. د بستر د سطحی پوښل په نبلقی بقایاوو خصوصاً په ګرم موسم کی د تبخیر د کمیدلو سبب ګرزي. او د ځمکی په پورتنیو طبقو کی د رطوبت د ساتلو سبب کیږی.

د ځمکی تخته کیدل

ځمکه په نمونوي ډول ۵۰ فیصده خلاګانی لري چه اوبه او هوا پکی په مختلفو تناسبونو او د تغیر په حالت کی وي. شګلنی خاوری غټ سو ري لري نظر مټینی خاوری ته خو د مټینی خاوری مجموعی خالیګاوی نظر شګلنو خاورو ته ډیری وی او اوبه ساتلی شي.

کله چه ځمکه د درنو ماشینونو پواسطه تخته شي، د خاوری ذرات یو د بل سره نژدی کیږي او هوایی خالیګاوی کمیږي او پدی ترتیب د هوا او اوبو مقدار چه باید هلته و ساتل شي هم کمیږي او جریان یی بطي کیږي . د ځمکی

ډیر تخته کیدل د کمزوری تخلیی او د ریشی د کمی ودی سبب ګرځي. د اړولو لپاره ډیره انرژی پکار ده. هغه اوبه چه د ځمکی په سطحه باندی د موټر د ټیرونو په اساس ډنډ شوې وي او د ځیرو په آخر کی چیرته چه تراکتورونه تاویږي. د اوبو جمع کیدل همدا حالت په بشپړه توګه ښیی.

د قلبی کولو په پذریعه کیدای شی سخت یا تخته شوی ځایونه نرم او مات کړي . ددی لپاره چه زراعتی عملیات موثروی نو ځمکه باید وچه اوسي . مصرف یی زیات دی او تاثیرات یی لنډ مهاله خود کرهنیز عملیاتود بدلون په اساس کیدای شی دا مشکل حل کړای شي.

زهکشی

د ځمکی یا پټی خرابه نقشه او ناهمواری د سطحه په زهکشی باندی منفی اغیزه کوي . په هغو ځمکو کی چه ضعیغه تخلیه ولري، کیدی شی چه اوبه په ځمکی کی د ډیرې مودې لپاره پاتې شي چه د نبات وده او د غذایی موادو جذب کموي . د اوچتو شوو بسترونو څخه د سبزیجاتو د تولید په منظور استفاده کول د پټی ښه تخلیه او نباتات نه پریږدی چه د اوبو سره په مستقیم ډول په تماس شي (6.9 شکل).



9.1 شکل: د شدید باران څخه وروسته، سبزیجات په اوچتو بسترونو باندی

په وچو منطقو کی، چیرته چه د خاوری په محلول کی د سودیم د ایونونو لوړه فیصدی وی. ضعیفه تخلیه د خاوری د جوړښت د خرابیدو سره مرسته کوي. څنګه چه د سودیم او د خاوری تر منځ د کشش قوه موجوده ده، نو د سودیم ډیر مقدار باعث ددی کیږي چه د خاوری ذرات بو بل سره ونښلی . هوایی خلاګانی کمیږي، خاوره کلکیږي او د نفوذ قابل نه وي او د نبات وده نشي تامینولای. د خاوری ښه تخلیه دا یقینی کوی چه د سودیم آیونونه په خاوره کی ژور ځي او د فصل وده نه متاثره کوي.

## 2. د بازار لپاره د توليداتو پلانول

### 1.2 سريزه

د هر موسم د فصل د پيل څخه د مخه يو کروندګر بايد پلان کړ ئ چه څنګه د خپلی ځمکی، کار او وسايلو څخه په ببلابيلو کاروباری برخو کی (فصلونه، مالداری، ونی او داسی نورو کی ) ګټه واخلی تر څو خپل هدفو ته ورسيږي. کيدای شي چه هدف داوي چه په فارم کی توليد زيات شي او يا داچه د کورنۍ لپاره په کافی اندازه خواړه برابر شي او يا هم داچه د فصل او مالدار ی څخه ډير تر ډيره ګټه تر لاسه شي . په شرقی برخه کی د سبزيجاتو توليد کورنيو ته د عايد يوه مهمه برخه تشکيلوي . له همدی کبله بزګران بايد يوه شي چه څنګه داسی فصلونه توليد کړي چه په بازار کی ورته غوښتنه په لوړه کچه وي تر څو خپله ګټه ډيره کړي.

دا باب د هغو توسعه کارانو سره مرسته کوي چه د بازار لپاره د توليداتو د عرضه کولو په پلانولو باندی پوه شی او وکولائ شي چه څنګه د بازار سره اړيکی او رابطی ټينګی کړي.

### 2.2 منسجمه زمينداری د پلانولو لپاره د يو چوکات به حيث

د بزګرانو سره د پلانولو لپاره يوه منظمه او سيستماتيکه طريقه د منسجمی زمينداۍ چوکات دی (2.1 شکل) چه د ځمکی د اصلاح او د حاصلاتو د توليد د زياتوالی لپاره د اوبونی د اداره کولو او دوام په منظور استعماليږي . دا مفکوره اوس پراخه شوی او د توليدي کاروبارونو فصلونو او مالدارۍ او همدارنګه د ځمکی او اوبو اداره کول هم پکی شاميليږي تر څو ډاډ تر لاسه شي چه توليدات ګټور او همدارنګه بادوامه دي.

#### 1.2 د توليد لپاره د ځمکی د استعمال او پلان چوکات



دا چوکات د بزګرانو سره مرسته کوي چه د پلانول پروسه پرمخ بوځي تر څو د تولیداتو ټول اړخونه هم د فزیکی چاپیریال او هم د ټولنیز چاپیریال د نظره په راتلونکو ستراتیژیو کی عا مل شی .

**د فزیکی نقشی پلانول**

د کروندی فزیکی طرح یا نقشه په اداري پریکړو لکه د کارونو تنظیم او وخت، د بزګرانو لاس رسیي بازار او خام موادو ته او د هغوی لاس رسي د فصل او مالداری لپاره کافی ا وبو ته، باندی اغیزه لري . د باغ سرحدونه د پټیو شمیر یی او دا چه کومی برخی یی د کومو کارونو لپاره ټاکل شوي دي (د مزرعی لپاره، د کور لپاره او دداسی کارونو لپاره لکه ورکشاپ، ذخیره، پروسس کول ) او د اساسی زیربنایی تاسیساتو سره په کوم موقعیت کی قرار لري باید په دیاګرام کی شامل شي . د سرک سره نژدې والی بزګرانو سره مرسته کوي چه د موادو د انتقال مصارف تر کوره او یا تر بازاره او پراسس کولو تر ځایه راښکته شي . په هغه وخت کی چه باارزښته او مصرفیدونکی فصلونه تولید او بازار ته عرضه کیږي، نو وخت او مصارف یی ډیر مهم دي.

په شرقی زون کی ټول زراعتی فعالیتونه د اوبوني په عنعنوي سیستم باندی متکي دي . بزګران باید یو څه وخت ددی لپاره پیدا کړي تر څو د اوبوني شبکه پاکه کړي چه ټولو پټیو ته ورسیږي . که چیری کافی اوبو ته لاس رسی یوه ستونزه وي، نو د ګډه کرونده او د ځمکی قسمت یا ټا کل د بېلابیلو هدفونو لپاره باید هماغسی تنظیم شي.

**د ځمکی څخه د استفادی پلانول**

ځینی ځمکی د دانه بابو د فصلونو لپاره مناسبی وي، ځینی د سبزیجاتو او ځینی د ونو لپاره لکه میوه داری ونی . ځینی ځمکی د فصل د تولید لپاره مناسبی نه وی خو کیدای شی چه د څارویو د پوولو او د ک بانو د فارم لپاره مناسبي وي. د ځمکی د مناسبوالی پیژندل د بیلابیلو فعالیتونو لپاره بزګرانو سره مرسته کوي چه ځمکه د خپلو تولیدي هدفونو سره پرتله کړي . کیدی شی چه بازار کی ځینو تولیداو د خرڅلاو لپاره ښه فرصت موجود وي خو که ځمکه ورته مناسبه نه وي، نو نشو کولای چه د نوموړي فرصت او چانس څخه ګټه واخلو.

**د تولیداتو پلانول**

لکه څنګه چه ددی کتاب اصلی ټینګار د سبزیجاتو په تجارتي تولید باندی دی، نو پلانول هم باید د سبزیجاتو په برخه کی وشي . بزګران معمولاً په بیلابیلو تولیدي کارونو کی مصروف وي . د هر تولیدی تشبث لپاره لکه مالداری، ونی او داسی نورو لپاره باید پلانول په مشابه ډول تر سره شي تر څو بزګران وکولای شي چه په عمومی ډول تخصیص او ټاکل تر سره کړي.

کروندګر مشوری ته اړتیا لري چه کوم ډول فصلونه وکری او د بازار د کوم فرصتونو څخه ګټه واخلي، که څه هم بزګران باید تل آخرنی پر یکړه خپله وکړي. پراختیایی کارکوونکی دوی سره مرسته کولای شي چه بیلابیلی لاری وڅیړي. د سبزیجاتو د تولید په پریکړو باندی د بازار په هکله معلومات او آشنایی مهم اغیزه لري . دا پدی معنی ده چه داسی سبزیجا ت وکرل شي چه بازار کی ورته تقاضا موجوده وي او کوم چه بزګرا ن کولای شي په موثره او ګټوره توګه وکری .

**د منفردو سبزیو انتخاب**

د سبزیو انتخاب باید د هغوی څخه د راتلونکو تر لاسه کیدونکو ګټو په اساس تر سره شي . د 2.1 جدول د ساده طریقی څخه استفاده بزګرانو سره مرسته کولای شي چه تعین کړي چه کوم سبزیجات ورته ډیر ګټور دي . د قیمت په هکله دقیق معلومات او د هغه وړتیا چه په واقع بینانه توګه د بیو په اړه وړاندوینه تر سره شي خو دا اهمیت لري تر څو ډاډمن شو چه راتلونکی ګټه باوری ده او پدی توګه یوه سمه پریکړه وکړو . د شرقی زون د معلوماتو سیستم په ورځنی تو ګه د موادو د بیو په هکله معلو مات تهیه کوي. هم د نورو (لکه سره، تخم، حشره وژونکی مواد او داسی نور) په هکله او هم د محصولاتو په هکله (لکه میوی، سبزیجات، زړي)، چه دا معلومات د بیلابیلو ذریعو په واسطه (رادیو، بریښنالیک، لیکلی تیلفونی پیغام) بزګرانو ته رسوي. تاسی د بزګرانو سره مرسته کولای شئ چه دا معلومات وکاروي او د بیلابیلو فصلونو څخه لاس ته راتلونکی ګټی محاسبه کړي . په 2.1 جدول کی مثال د بادرنګو دی چه په شرقی زون کی کرل کیږي او یو کیلو په لسو افغانیو پلورل کیږي.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| عاید | | (a) Market yield per jerib 3500 Kg<br>(b) Price at 10 Af/Kg | | |
| | | | ناخالصه ګټه = axb = ۳۵۰۰۰ | |
| | | | | Af |
| د تولیدولو مصارف | د خامو موادو مصارف | تخم | 200 g at 6 Af/g | 1200 |
| | | DAP | 25 Kg at 27 Af/Kg | 675 |
| | | یوریا | 50 Kg at 15 Af/Kg | 750 |
| | | حیواني سره | 4 T at 500 Af/T | 2000 |
| | | حشره وژونکی کیمیاوی مواد | 500 cc at 0.3 Af/cc | 150 |
| | | فنګس وژونکی | 500 g at 0.3 Af/g | 150 |
| | | ترکتور | 2 hr at 400 Af/hr | 800 |
| | | د حیوانی سری انتقال | 2 trips at 500/trip | 1000 |
| | | | **Subtotal inputs** | **6725** |
| | د کار مصارف | د ځمکی،چرو او بستر تیارول | 10 days at 150 Af/day | 1500 |
| | | کرل او د بزغلیو انتقال | 5 days at 150 Af/day | 750 |
| | | د سری تطبیق | | |
| | | د حشره وژونکو کیمیاوی موادو تطبیق | 5 days at 150 Af/day | 750 |
| | | اوبه ورکول | 2 days at 150 Af/day | 300 |
| | | د هرزه بوټو کنټرول | 15 days at 150 Af/day | 2250 |
| | | حاصل ټولول | 20 days at 150 Af/day | 3000 |
| | | | 14 days at 150 Af/day | 2100 |
| | | | د کار او زحمت فرعی مجموعه | **10650** |
| | د بازاریابی مصارف | بسته بندی | ۷۵ بوجی، یوه بوجی په ۵ افغانی | 375 |
| | | انتقال | ۷۵ بوجی، یوه بوجی په ۵۰ افغانی | 3750 |
| | | مالیې | ۷۵ بوجی، یوه بوجی په ۲ افغانی | 150 |
| | | | د بازاریابی فرعی مجموعه | **4275** |
| | | | **c**. د تولیداتو او بازاریابی مجموعه | **21650** |

**Gross Margin/net return per jerib [ (a x b) – c] = 13350 Af**

**Break even price per Kg  (c÷a) = 6.2 Af/Kg**

د مصارفو په محاسبه کی باید په یاد ولرو چه  ۸۰ فیصده مصارف په ۲۰ فیصده شیانو باندی راځي نو له همدی کبله دا مهمه ده چه د غټو مصارفو په هکله د قیق معلومات ولرو . د بزګرانو مصارف او ګټی توپیر کولای شي او پورته ښودل شوي حسابونه دوی سره مرسته کولی شي چه خپل اجراات د نورو سره پرتله کړي.

کله چه د تولید مصارف او ګټی حساب شوې، بیا کیدای شي چه په یو مختصر جدول کی ډیر فصلونه سره مقایسه شي. جدول ته وګورئ چه د C فصل د خرخولو لوړ ارزښت لري لیکن نظر د A او B فصلونو ته یی ګټه کمه ده. بزګران باید ناخالصه ګټې او خالصه ګټو تر منځ په توپیر باندی پوه شي (خالصه ګټه چه کله مصارف تری وښکل شي).

برسیره پر دی چه د ټاکلو فصلونو ګټه معلومه شي، بزګران با ید د بازار به هکله معومات تر لاسه کړي لکه هغه معلومات چه د شرقی زون د بازار د معلوماتو د سیستم پواسطه ورکړل کیږي او همدارنګه د مارکیت په هکله

ځينې نه تر سره کړي تر څو معلومه کړي چه کوم فصلونه شايد د قيمت، کيفيت او ياموسم له نظره ډير کاميابه اوسي. دا معلومات بايد همدارنګه معلومه کړي چه هغه ډولونه چه ډير مصرفيږي او خلک نورته ترجيح ورکوي کوم دي او هم د عرضه کولول لپاره مناسب وخت معلوم کړ ئ. دا ټولی لاس ته راوړني بايد د بزګرانو لپاره په عملی وړانديزونو تبديلی شي چه لاندی ټکي پکی شامل وي:

- هغه ډولونه چه په بازار کی ترجيح ورکول کيږي
- د کښت تاريخونه (مثلاً د عرضی موده اوږدول لکه د پرله پسی فصلونو کښت، هغه وخت هدف ټاکل چه بيه لوړه وي او يا د ډيری عرضی د وخت څخه ډډه کول).
- نور تخنيکونه تر څو توليدات داسی وختونو ته برابر شي چه لوړه بيه ولري لکه د وختی او ناوخته ډلونو استعمال د پرله پسی فصلونو په سيستم کی د پوليتين تونلونو څخه استفاده
- هغه تخنيکونه چه کيفيت پری اصلاح شي لکه په مناسبه توګه سره ورکول، د فصلونو حفاظت، ښاخونه قطع کول، ښه او موثره اوبونه، او د هوا څخه يی ساتل

**د ډيرو سبزيو انتخاب**

بزګرانو ته دا توصيه کيږي چه د فصلونو د ډيرو ډولونو د انتخاب او په هغو ډولونو باندی تمرکز کول چه ورته ډيره ګټه کوي، ددوی تر منځ يو تعادل غوره کړ ئ. د ډيرو فصلونو توليد په بازار کی د يو فصل د ناکامی اغيزه کموي. د مثال په توګه که چيری بزګران يوازې کچالو کري او هغه هم د Potato Blight د حملی لاندی راشي نو هيڅ به په هغی موسم کی لاس ته ورنشي . خو که چيری دوه يا دری نور فصلونه وکر ئ او په کاميابی سره يی حاصلات راټول کړ ئ نو د کچالو د ناروغی پواسطه ډير کم متاثره کيږي . اکثره ډير ګټور فصلونه ډير خطرناکه وي نو بهتره داده چه داسی يو سيستم ولرو چه په هغی کی خطرناکه فصلونه د هغو فصلونو پواسطه جبران شي چه باوري وي. مثال يی کيدای شی داوی چه يو يا دوه د سبزيجاتو ګڼ فصلونه وکرل شی لکه پياز او کچالو د لوړ قيمت والا توليداتو سره لکه شنه يا سور مرچکيان او پانی لرونکی سبزيجات يا سلاد.

په شرقی زون کی د ميوو او زړو يا خستو ونو ته پرمختګ ورکول کيږي، تر هغه پوری چه ونې لوييږي او مکمل توليدات ورکوي، کولای شو چه سبزيجات پکی وکرو . دا طريقه بزګرانو سره مرسته کوي چه په فوری ډول ګټه لاس ته راوړي په داسی حال کی چه دری يا څلور کاله ونو ته انتظار وکاږي.

**د فصلونو تناوب**

يوه سبزی يا د يوی کورنی پوری مربوط فصل بايد په يوه ټاکلی ځمکه کی هر موسم ونکرل شي (لکه د Solanaceous د کورنی نباتات). د فصلونو تر منځ په ښه توګه اداره شوی تناوب لکه د منی او دوبی د سبزيجاتو تر منځ کولای شي چه کرونکو ته ډيری ګټې ورپه برخه کړي ځکه چه مصارف يی کميږ ي او حاصلات لوړيږي. هر وخت يو ډول فصل کرل آسانه وي خو مضره بوټی کولای شي چه په چټکی سره ډير شي او فصلونو ته ضرر ورسوي. تناوب ددی ستونزی څخه مخنيوی کولای شي اوهم د قيمته کيمياوی دواوو د اخيستلو څخه چه د هرزه ګياه د مخنيوی لپاره استعماليږی مخه نيول کيږی.

د ناروغيو عاملين او مضره حشرات په ځمکی کی په نباتی بقاياوو او په هغو نباتاتو کی چه د پټيو کی وي، ژوند کولای شي. لکه څنګه چه ځينی مضره حشرات يو ډول فصل ته خصوصيت لري نو په فصلونو کی دوران ددوی د ډيرښته مخه نيسی او شمير يی کموي . دا خصوصاً د Cucurbits لپاره (هندوانه او بادرنګ )ب، د Salanaceous نباتاتو لپاره (روميان، بانجان، کچالو) او Brassicas (کرم او ګلپی) لپاره اهميت لري.

| د نبات هغه برخه چه په حاصل کی اخیستل کیږي | ریشی | پانی | نور |
|---|---|---|---|
| **فصلونه** | گازری، کچالو، ملی، شلغم | گلپی، کرم، براکولی، کاهو | رومی، پیاز، هوږه، **cucurbits** |
| **سری ته ضرورت** | سره مه علاوه کوئ | ښه تجزیه شوي حیوانی سره، که څمکه کمبود ولري | د کښت په وخت کی ډیره سره علاوه کړئ |
| **د څمکی تیارول** | په ژوره توگه یی وکرئ | | ژوري ریشي نه لري |
| **د اوبو اړتیاوی** | ښه تخلیه مهمه ده | ډیرو اوبو ته ضرورت لري | په منظم ډول اوبه ورکول |

ځینی فصلونه نظر نورو ته ډیر غذایی مواد اخلی. بیلا بیل فصلونه د څمکی د بیلابیل برخو څخه غذایی مواد اخلی د مثال په توگه ریشی او غوټی د څمکی د ژوری برخی څخه غذایی مواد اخلي نظر پاڼی لرونکو فصلونو ته . بزگران باید تناوب زراعتی په پام کی ولري . په څمکه باندی مختلف سبزیو په مختلفو وختونو کی یوه بله طریقه ده چه د خطرانتشار کمیږی. په شرقی زون کی یو توصیه شوی دوران یا تناوب دادی چه اول ریشی والا فصل او بیا بل فصل او وروسته پانی لرونکی فصل به عین څمکه وکرل شي.

2.3 جدول دا مونږ ته راښیي چه کوم سبزی چه په دری واړو کتگوریو کی پیداکیږي د هغوی اداره کولو اړتیاوی خلاصه کوي.

**د پانگی اچونی پلانول**

د سبزیجاتو په تجارتی تولید کی پانگه اچونه باید د خطر په کمولو سره د بزگرانو عاید ښه کړي، عاید د قیمت په لوړولو سره ښه کړي، د حاصل په ډیرولو سره گټه لوړه بوزی، د تولید مصارف کم کړي او یا اضافی گټه تولید کړي.

**پانگه اچونه**

هغه پانگی اچونی چه حاصلات په ثابت ډول لوړوي او خطر کموي دادي:

- تجهیزات، کیمیاوی مواد او یا تکنالوژی چه د مضره حشراتو او ناروغیو په مقابل کی ساتنه کوی لکه دواپاش او دواگانی
- د اوبو ورکولو سا ختمان او یا نور تکنالوژی اصلاح کول (لکه د Polyethylene تونلونه) چه د هوا د برعکس حالاتواغیزی کموی. دغه راز پانگه اچونه د سبزیجاتو په تولید کی په خاصه تو گه اهمیت لري. کله چه حاصلات د ناروغیو یا حشراتو له امله کمه وی نو په بیو یا قیمتو کی د پام وړ لوړوالی راځی، نو هغه کرونکي چه حاصلات یی ډیر کم متاثره شوي وي ډیره گټه کوي.

هغه پانگه اچونی چه د تولیداتو بیه اصلاح کوي په لاندی ډول دي:

- تکنالوژی د بی موسمه تولیداتو لپاره لکه د Polyethylene تونلونه او یا د بزغلیو پرمختللی تکنالوژی
- هغه پانگه اچونی چه مستقیماً د بازاریابی د اصلاح لپاره ترسره شوی وي لکه په فارم کی ذخیره، د انتقال ټرکونه او تیلیفونونه چه اړیکی پری ډیری وساتل شي.

- هغه پانګه اچونه چه د تولیداتو کیفیت اصلاح کوي (لکه اوبه ورکول، د فصلونو حفاظت، د کښت لپاره د لوړ کیفیت لرونکی مواد او تصدیق شوي تخمونه، د کاګرانو روزنه)

هغه پانګه اچونه چه حاصلات لوړوي:

- د اوبو ورکولو تجهیزات
- کیمیاوی او حیوانی سری (صحیح اندازه، د تطبیق مناسب وخت، د بی لابیلوغذایی موادو صحیح مقدارونه)
- تصدیق شوي تخمونه او د لوړ کیفیت والا د کښت مواد

هغه پانګه اچونه چه د تولید مصارف کموي:

- د مضره بوټو پر ضد کیمیاوی مواد او میخانیکی وسایل چه مزدورانو ته ضرورت کموي

هغه پانګه اچونه چه اضافی ګټې پیدا کوي:

- د پروسس کولو ماشین آلات چه د تولیداتو ارزښت لوړوي
- انتقال یی ترڅو تولیدات نوو بازارونو ته یوسي

**د موادو تهیه کول**

د موادو تهیه کول په ګټه باندی مستقیمه اغیزه لري . که چیری صحیح مواد په صحیح وخت کی او په مناسبه بیه مهیا نه شي نو د سبزیجاتو تولید به ګټور نه وي . بذري تخم او د کښت مواد خاص اهمیت لري. صارفین د رنګ، خوند او ډول لپاره ترجیحات لری . د مثال په ډول په هندوستان کی صارفین کوچنی رومیان (Roma type) خوښوي خو په کابل کی خلک غټ او ګرد ډولونه خوښوي (د Beefsteak ډولونه یی ). د تولیداتو رنګ هم مهم دی لکه توربخن بانجان نظر شنو ډولونو ته ډیر خوښیږي. د ښه کیفیت او د ناروغی څخه پاک د کښت د موادو په استعمال سره د کرونکو ګټه لوړیږي. د پراختیایی کارکوونکو وظیفه داده چه ډاډ تر لاسه کړي چه د بذری تخمونو عرضه کوونکی او قوریی چه کوم ډولونه ذخیره کړي او بل داچه بزګران پوهیږي چه ددوی د ضرورت وړ مواد د کومو خرڅوونکو سره شته.

په اوسنی حالت کی په شرقی زون کی DAP او یوریا یوائینی سری دی چه په بازار کی پیداکیږي. لکه څنګه چه خاوره د متوسط څخه تر قوي درجی پوری القلی ده، د کوچنیو یا مایکرو غذایی موادو کمښت (لکه اوسپنه، جست، منګانیز او داسی نور ) د سبزیجاتوحاصلات محدودوي. لکه څنګه چه ډیر تخنیکی معلومات لاس ته راځی چه وپوهیږو چه دا ډول ځمکی څنګه اداره کړو، پراختیایی کارکوونکی باید د موادو عرضه کوونکی خبر وساتي ترڅو هغوی وکولای شي چه مناسبی سری ددی ستونزی د رفع کولو لپاره واردی کړي.

حشرات او ناروغی په شدیده توګه د یو سبزی کیفیت، قیمت او احتمالی ژوند کمولای شي. ځینی وختونه داستونزی د فصل د سانتی مناسبو عملونو پواسطه حل کیدای شي . هندوستان د سپری پروګرام معرفی کړ ترڅو د کشمیر د منو د Scab ناروغی کنترول کړي. ددی پروګرام د معرفی کولو یوه مهمه مرحله دا وه چه ډاډ ترلاسه کړي چه د زراعتی کیمیاوی موادو پلورونکی توصیه شوی مواد لری.

**مالیه او قرضه**

بزګران اکثراً د کار سرمایه نه لري چه په تولید کی یی پانګه اچونه وکړي . په شرقی زون کی اوس هیڅ مالی اداری نشته چه برګرانو ته د سبزیجاتو د تولید لپاره قرضی ورکړي . د خپلو منابعو برسیره هغوی باید په غیر رسمی منابعو باندی لکه محلی قرض ورکوونکي، د فامیل غړي، ملګري، تجاران او عمده فروشانو باندی تکیه وکړي. غیر رسمی قرضی د نژدی فامیلی اړیکو په بنا تر سره کیږي او یا باهمی اعتماد موجود وی او د کاغذ پرانی څخه خلاص وي.

## د تجارتی کولو پــلان

**د بازار یابی ستراتیژی یا کړنلاری**

بزګران د بازاریابی ډیری لاری لري چه هره لاره ځانته ګټی او تاوانوه لري (2.4 جدول). پراختیایی کارکوونکی یا توسعه کار د بزګرانو سره مرسته کولای شي چه دغه لارې تحلیل او تجزیه کړي . د مثال په توګه دا چه په محلی بازار کی تولیدات وپلوري او یا په عمده فروشانو باندی یی د صادرولو لپاره اماده او وپلوری

**24 جدول: د بازاریابی متبادلی ستراتیژۍ**

| | ګټی | تاوانونه |
|---|---|---|
| په ګاونډیو خرڅول | په تجارتی کرنه کی لمړی قدم ، کرونکي باید وتوانیږي چه داسی تولیدات عرضه کړي چه نوریې په کرلو کی ستونزه ولري او یایی نه شی کرلی لکه بی موسمه تولیدات یا ډیر مشکل تولیدات | په آسانی سره کیدی شی چه بازار ته عرضه ډیره شي |
| محلی بازار کی خرڅول | په تجارتی کولو کی دا بله مرحله ده. په دی مرحله کی تولیدات محلی بازار ته چه اکثراً یو کوچنی بازار وي، انتقالیږي او خرڅیږي | په آسانی سره کیدی شی چه بازار ته عرضه ډیره شي |
| په ملاقات کوونکو تاجرانو باندی خرڅول | هغه تاجران چه په کرونده کی تولیدات اخلي، د انتقال جنجال پکی شامل نه وي . ښه اخیستونکی کولای شی چه نظر ورکړي چه کوم تولیدات بازار کی غوښتل کیږي، چه دا کار بزګرانو ته وړتیا ورکوي چه په تولید باندی تمرکز وکړي. | مشکل وی چه د یو پیاوړي موقف څخه بیه وټاکل شي . په اخیستونکی باندی د معلوماتو لپاره تکیه کیږی. |
| د عمده فروش بازار له لاری خرڅول | بازار د تولیداتو ډیر مقدار جذبولای شي . د بازار بیی په نسبی توګه شفافی وي . که چیری کافی اندازه موجود ه وي او بزګران منظم وي نو تولیدات د بیلابیلو بازارونو څخه راټولیدلای شي. | د بازاریابی او تجارت لوړ مهارت ته ضرورت دی . د بازار نمایندګان باید انتخاب شي، بیی چیک شي انتقالات تنظیم شي او تولیدات درجه بندی، بسته بندي او بازار ته وړاندي شي. |
| پروسس کوونکو باندی خرڅول | پروسس کوونکی ضرورت لري چه خام مواد تر لاسه کړي نو ځکه دا بازار ډیر باوری دي . ځینی پروسس کوونکی خام مواد او تخنیکی مرستي رسولای شي تر څو د حاصل اندازه او کیفیت اصلاح شي . قرارداري تولیدات یو امکان دی . په عمومی توګه د پروسس شوو غذاګانو لپاره تقاضا مخ بهډیریدو ده | قیمت کیدای شی چه ښکته وي . بزګران شاید د قرار داد خیال ونه ساتي او په محلی بازارونو کی یی په لوړه بیه خرڅ کړي . پروسس کوونکی شاید د ضرورت وړ مرستی او مواد تهیه نکړي . پروسس کوونکی شاید ومومی چه د پروسس شوو موادو لباره تقاضا کمیږي نو هغوی د بزګرانو څخه تولیدات نه اخلي |
| د ښار شاوخوا تولید | هغه تولیدوونکی چه د ښار په شاوخوا کی قرار لري کولای شي چه غټو ښاری بازارونو ته لاره وموږي خاصتاً د مصرفی تولیداتو لپاره. تولیدات بازارته انتقالیږي او تقاضا ډیره وي . تاجران تولیدات د ځمکو څخه اخلي او حتی حاصلات هم ټولوي | غلا او امنیتی مشکلات کیدی شی یو جدی ستونزه وي. |

د بیو او د کیفیت تقاضاګانی د بازار د هری برخی لپاره فرق کوي . بزګران باید وپوهیږي چه څه شي ته ضرورت دی او د بیو په هکله ښه معلومات ولري تر څو ښه پریکړه وکړي.

**د بازار په هکله معلومات**

کرونکی په شرقی زون کی د بازار د معلوماتو سیستم ته لاس رسی لری. دا معلوماتی سیستم معومات راټولوي، تجزیه کوی یی او په پنځه بازارونو کی د ۵۸ تولیداتو په هکله د بیو معلومات خپروي . په کابل، اسداباد، جلالآباد، مهترلام او پیښور کی . په تولیداتو کی زراعتی مواد لکه سره، تخم، حشره وژ ونکی مواد او همدارنګه محصولات لکه میوی، سبزیجات او غوښه شامله وی . د کرنی او مالداری د وزارت (MAIL) پراختیایی کارکوونکی اود ختییځ زون د بدیل معشیت ( ALP/E) تخنیکران د بیو په هکله معلومات په ورځنی توګه راټولوي، معلومات جدول ( ډاټابیس )ته داخلیږي چه د مختلفو وسیلو پواسطه خپریږي – د رادیو، بریښنالیک او تیلیفونی لیکلی پیغامونه د غوښتنی په اساس . TAMAS په افغانستان کی د موبایل د لیکلی پیغام یوه برخه ده چه تر اوسه بی ساری ده . دا سیستم د بیو په هکله معومات خپروي تر څو بزګران او تاجران ښه تصمیمونه ونیسي . TAMAS هر سهار نهه بجی نوی کیږي او ۲۴ ساعته فوری یا مستقیم د بازار معلومات ورکوي.

د بادرنګ د بیو په هکله غوښتنه د کابل په بازار کی

1. د انګریزي لپاره ***e*** استعمالول
2. ***009*** د بادرنګ لپاره
3. ***5*** د کابل لپاره
4. ***w*** د عمده فروشی لپاره

دا پیغام ***0797000700*** ته واستوئ

د یو څو ثانیو په دننه کی به تاسی ته په کابل کی د بادرنګو عمده فروشی بیه راولیږل شي.

بزګران کولای شي یو لیکلی پیغام تاماس ته د تولید او بازار د کودونو سره واستوي او په یو څو ثانیو کی کولای شی جوابی پیغام تر لاسه کړي . پراختیایی کارکوونکی باید د تاماس د کودونو د معلومات ورقی (بروشر) له ځانه سره ولري چه بزګرانو ته یی ورکړي. هغوی کولای شی بزګرانو ته وښايي چه څنګه تری استفاده وکړي.

د بازار او کاروبار ترمنځ اړیکي پیدا کول

یو احتمالی اخیستونکی شاید د هغو سبزیجاتو څخه بی خبره اوسي چه په شرقی زون کی یی بزګران تولیدوي او یا د هغو تولیداتو څخه ناخبره وي چه د بازار د شتون په صورت کی یی نوموړي بزګران د تولید توان لري . د بزګرانو یوه ډله شاید په انفرادی توګه په صارفینو باندی تولیدات خرڅ کړي، حال داچه ددی څخه ناخبره وي چه یو عمده فروش یی په ښه بیه اخلي که چیری په کافی اندازه ورکړل شي برسیره پر دی، بزګران شاید دا مهارت ونلری چه په عمده فروشانو باندی یی په ښه بیه خرڅ کړي.



بزګران د میسج (پیغام) له لارې نرخونه معلوموي.

د پراختیایی کارکوونکو په توګه تاسی مسولیت لر ئ چه بزګرانو سره مرسته وکړئ چه د بازار او کاروبار اړیکی ټینګې کړي او په ډیره ښه بیه تولیدات خرڅ کړي . تاسی کولای شی چه د نوو تجارتونو په ټینګولو کی برخه ولر ئ او د مشکل او یا مخابراتو ستونزو په صورت کی ارتباطی حیثیت ولر ئ. تاسی کولای شی چه د شرقی زون د بزګرانو لپاره فرصتونه ولټو ئ تر څو په منطقوي او حتی بین المللی کرهڼیز نمایشونو کی برخه واخلی.

د پراختیایی کارکوونکو لپاره یو ډېر ښه مآخد د FAO د کرنی او د بازاریابۍ د پراختیا رهنما کتاب دې، پنځمه ګڼه یی. د پراختیایی کارکوونکو د ونډی په هکله ډېر توضیحات ورکوي او د بزګرانو سره د کارکولو طریقی او وسیلی وراندی کوي تر څو تولیدات یی ډېر ګټور شي.

## 3. د نبات تغذیه د سبزیجاتو په تولید کی

### 1.3 سریزه

د غذایی موادو اخیستل، شاملول او د ودی لپاره د غذایی موادو استعمال عملیی ته نباتی نغذیه وایی . د سبزیجا تو تولید د تغدیی له وجه د د دری نقطو له نظره مثبت یا منفی متا ثره کوی

- کیفیت: په خاوره کی باید د ضروری عناصرو او منرالونو صحیح توازن و جود ولري تر څو نباتات تری استفاده وکړي
- مقدار: ددی موادو کافی اندازه باید خاوره کی موجود وي چه د نباتاتو اړتیاوی پوره کړي.
- وخت: د ودی او پرمختګ به صحیح وخت کی باید متنوع غذایی مواد موجود وی

توسعی کارکوونکی باید د نباتی تغذیی په اساساتو پوه شي تر څو هغوی وکولای شی چه بزګرانو ته مشوری ورکړي چه څنګه د ښه کیفیت لرونکی سبزیجات تولید کړي او بازار کی یی خرڅ کړي . پدی فصل کی د نباتاتو ضروری غذایی موادو په هکله معلومات وړاندی کیږی او ددی غذایی موادو په نقش باندی چه د نبات به وده کی یی لری معلومات ورکول کیږي. همدارنګه د خاوری د pH او د غذایی موادو د موجودی ترمنځ ارتباط څیړي. او دا چه څنګه د بزګرانو په څمکه کی د غذایی موادو کمښت تشخیص شي.

### 2.3 د نبات اساسی غذایی مواد

د نبات د ودی لپاره ۱۶ عنصره مهم ګڼل شوي دي . مهم عنصر هغه دي چه کله په عدم موجودیت کی یی نبات ووژل شي. غیر منرالی عنصرونه لکه کاربن، هایدروجن او آکسیجن د هوا او اوبو څخه راځی . دا دری واړه د نبات پواسطه استعمالیږي او د لمر د وړانګو په موجودیت کی په شکر او نشایستی تبدیلیږي چه د نبات غذا تشکیلیوي. لکه څنګه چه دا عنصرونه د هوا او اوبو څخه راځي نو بزګران پکی څ ه خاص نشی کولای یعنی اندازی یی تر کنترول لاندی نشي راوستلای . پاتی ۱۳ عنصرونه منرالونه دي. کله چه په اوبو کی حل شی نو د نبات د ریشو د سیستم پواسطه جذبیږي او داسی ضروری ترکیبات جوړوي چه د نبات د حیاتی فعالیتونو لپاره ضروري وي. کله چه په خاوره کی موجود غذایی مواد، د نبات د ودی او انکشاف لپاره په کافی اندازه نه وي نو بزګران کولای شي چه د سری په شکل یی ورعلاوه کړي . ددی غذایی موادو دری عنصرونه چه نایتروجن، فاسفورس او پوتاشیم دی هغه لومړی مهم عناصر دی چه نباتات یی په ډیره پیمانه د بشپړی ودی لپاره ورته ضرورت لري. دا عنصرونه معمولاً په خاوره کی په کافی اندازه موجود وي او هم کیدای شي چه د ځینو پرمختللو سرو په ترکیب کی ورعلاوه شي.

پاتی نور ۷ عنصره چه کوچنیو غذایی موادو پنامه یادیږی د بورون، اوسپنی، مولبدینیم، کلورین، منګانیز، مس او جستو څخه عبارت دي. او به نهایت کم مقدار ورته ضرورت وي. اکثره خاوری په کافی اندازه دا عناصر لری خو د نباتاتو اړتیاوی دی عنصرونو ته مختلفی وي او موجودیت یی د خاوری د pH پوری اړه لري.

### 3.3 د غذایي موادو نقش د نبات په ودی او انکشاف کی

د نبات هر غذایی عنصر د نبات په وده او انکشاف کی رول لري . د یوی عمومی قاعدی په توګه ویلای شو چه نایتروجن د پانی لرونکو نباتاتو د ودی، فاسفورس د ریشی او میوو د تولید لپاره، پوتاشیم د سرو به مقابل کی د مقاومت د ډیرولو، د ناروغیو په مقابل کی د مقاومت ډیرولو او ښه خوند او کیفیت لپاره دی . د سبزجاتو د کرونکو لپاره ضروری ده چه پدی خبرو وپوهیږي او د فصل په باره کی لازمی پریکړې وکړي. 4.1 جدول بزګرانو ته بو نظر ورکوي چه هره غذایی ماده څومره مهمه ده.

1.3 جدول: د مغذی عناصرو رول د نبات به وده او انکشاف کی

| نبا ت غذایی عنصر | د نبات په وده او نکشاف کی یی رول |
|---|---|
| نایتروجن | د ساقی او پاڼی د ودی لپاره مهم دی، د نباتی پروتینو او انزایم د ترکیب لپاره هم ضروری دی . په ډیره پیمانه شاید د نبات پخیدل وځندوي ځکه چه یواځی نمویی وده ډیروي. |
| فاسفورس | د تخم د شنه کیدو او د ریشو د ودی لپاره ضروری وی. د ګل او د میوی د تشکیل لپاره هم ضروری دی . فلسفورس د زړو نسجونو څخه ځوانو نسجونو ته انتقالیږي او به میوو او تخمونو کی تراکم کوي. |
| پوتاشیم | دا عنصر د نبات پواسطه په ډیره اندازه نظر نورو عنصرونو ته بغیر د نایتروجن څخه ، جذبیږي . د اوبو توازن ساتی ، سختوالی د ساقی او د سرو په مقابل کی مقاومت ډیروي. د میوو او سبزیجاتو په خوند او رنګ زیاتوالي راولی. د میوو د تیلو برخه اصلاح کوي او د پاڼی لرونکو سبزیجاتو لپاره مهم وي. |
| کلسیم | د حجروی دیوالونو د جوړښت یوه برخه تشکیلوي، په حجراتو کی د اوبو په جریان باندی اغیزه لری او د حجروی ودی او ویش لپاره ضروری وی. ځینی نبلتات د نایتروجن او نورو عنصرونو د اخیستلو لپاره باید کلسیم ولري. |
| مګنیزیم | د کلوروفیل یوه مهمه برخه تشکیلوي چه په شنو نباتاتو کی د فوتو سنتیز د عمل لپاره همدا موقعیت دی. د نباتی انزایمونو د فعالیت لپاره ضروری ده تر څو کار بوهایدریت، شکر او شحم تولید کړي . د میوی او زړي د تشکیل او د تخمونو د شنه کیدو لپاره ضروری وي. |
| سلفر | د پروتین، ویتامین او انزایم د جوړښت یوه برخه تشکیلوي. ډیر هغه انزایمونه چه د ساقی د غوټو په تشکیل او یا د نایتروجن په تثبیت کی رول لري، فعالوي. په شړشمو ( mustard)، پیازو او اوږه کی د خاص بوی او خوند مسؤل دی. |
| بوران | د حجروی دیوال د تشکیل لپاره ضروری او تقریباً په نباتاتو کی ۱۶ وظیفی مختل کوي . پدی وظیفو کی ګل نیول، د ګردی تشکیل، میوه نیول، حجروي ویش، د اوبو ارتباطات او د هورمونو حرکت شامل دی. |
| مس | انزایمونه فعالوي او د نبات په وده کی دخالت لري. په ریشو کی تراکم کوي او د نایتروجن د میتابولیزم یوه برخه ده. |
| کلورین | د نبات د استقلاب سره مرسته کوی او د اسموس د عملیی osmosis لپاره ضروری دی (د اوبو او منحله موادو انتقا ل حجری ته). د نباتاتو سره مرسته کوي چه منرالونه واخلی او د فوتو سنتیز د عمل لپا ره ضروری دی. |
| اوسپنه | د کلوروفیل د تشکیل او ډیرو انزایمی فعالیتونو لپاره |

| | |
|---|---|
| | ضروری دی. د ځوانو نباتاتو د دودی لپاره ضروری دی. |
| منګانیز | د فوتوسنتیز، تنفس او د نایتروجن د میتابولیزم یا استقلاب د عملیو لپاره او همدارنګه د پروتین د ترکیب لپاره ضروری دي |
| مولبدینیم | د پروتین د ترکیب او د ریشو په غوټو کی د نایتروجن د تثبیتوونکی بکتریا د فعالیت لپاره مهم دی . ددی څخه بغیر د پروتین ترکیب بندیږي او د نباتاتو وده دریږي. |
| جست | د کاربوهایدریت د استقلاب او د پروتین د ترکیب لپاره ضروری دی. د شکر مصرف تنظیموي او د انزایمونو د سیستم یوه برخه تشکیلوي. |

### 4.3 د نبات د غذايی موادو موجودیت او د خاوری pH

pH یو مقیاس دی چه د تیزابیت د اندازه ګیری لپاره استعمالیږي . د ۷ څخه ښکته تیزابی، پورته القلی او ۷ خنثی ګڼل کیږي. د خاوری pH له همدی کبله د خاوری د قلوی توب یا تیزابیت ښکارندویه وي . اکثره نباتات د خاوری تیزابیت نشی تحمل کولای د خاوری د تیزابیت په مقابل کی.

اکثره سبزیجات په متوسط اسیدی او خفیفاً قلوی (pH 5.5 – 6.8) خاوره کی وده کوي خو په هغه خاوره کی چه خنثی حالت ته نژدی وي ډیره ښه وده کوي (pH 6.0-6.8) . په قوي پی اچ کی چه یا شدیداً قلوی او یا تیزابی وي ځینی غذايی مواد یا په قسمی او یا په بشپړ توګه په خاوره کی بند پاتی کیږي او د نباتاتو پواسطه نشی استعمالیدلای. ځینی نور یی په مقدار کی ډیر زیاتیږي او نباتاتو ته زهری خاصیت لري . د مثال په توګه په 5.5 pH کی او یا د هغی څخه ښکته د کلسیم، مګنیزیم او پوتاشیم موجودیت ډیر کم وي او ځینی نور لکه اوسپنه شاید به ډیر زیات مقدار موجوده شي. چه نبات ته زهري وي. تر ټولو مهم عنصرونه (N,K,P) په خنثی او خفیفاً قلوی خاوره کی ښه موجودیت لري . په یاد ولرئ چه که خاوره په متوسط ډول القلی شی (pH 8)، فاسفورس، بوران، مس، جست او اوسپنه نه مهیا کیږي.

**2.3 جدول: دخاوری pH او د اساسی عناصرو موجودیت**






په شرقی زون کی خاوره متوسط یا قوي قلوي وی، په قلوی شرایطو کی د ځینو اساسی منرالونو موجودیت کمیږي تر هغه حده پوری چه د غذایی موادو کمښت رامنځ ته کیږي . د اوسپنی، منګانیز، جستو مس او بوران د کمښت په وجه د نبات وده مح دودیږي. فاسفورس همدارنګه په قلوی خاوره کی لږ وي او د کلسیم اندازه زیاته وی چه شاید د حجری پواسطه د پوتاشیم او مګنیزیم اخیستل منع کړي چه اکثراً به قلوی خاورو کی یی کمبود لیدل کیږي.




**4.3 شکل: د خمکی pH او دغذایی موادو موجودیت**

### 5.3 د غذایی عناصرو کمښت

د ودی د اندازی او د نبات پواسطه د غذایی موادو د اخیستلو تر منځ مستقیمه رابطه وجود لري . که چیری غذایی مواد به کافی اندازه په خاوره کی وجود ونه لري، نو نباتات تر فشار لاندی راځی او د حشراتو او ناروغیو په مقابل کی مقاومت د لاسه ورکوي. که چیری نباتات د خپل ژوند په یوه مهمه مرحله کی تر فشار لاندی راشي، نو پ ه حاصلاتو کی د پام وړ کموالی راځی.

د سبزیجاتو کرونکي او پراختیایی کارکوونکي دواړه ضرورت لري چه به څمکه کی د غذایی موادو د کمښت نښی نښانی وپیژني . د رومیانو په پاڼو باندی دا علامي د عکسونو په ترڅ کی وروسته ښودل شوي دي. کرونکی د سبزیجاتو دا عکسونه په پام سره په رنګه ښه کی کتلای شي تر څو د رنګ فرقونه یی تشخیص کړي . ددی معلوماتو نه په استفادی سره هغوی هڅه کولای شي چه په خپل فصلونو کی هم دغه علامی وګوري. دا دوی ته اجازه ورکوي تر څو تعین کړي چه آیا سبزیجات یی اساسی غذایی مواد به کافی اندازه لري.

### 6.3 د غذایی موادو د کمښت علامی – د رومی بانجانو مثال

لاندی عکسونه د ځینو غذایی موادو د کمښت علامی ښیي . په ځینو حالاتو کی دا علامی د شدید کمښت نمایندګی کوي خو دا عکسونه بزګرانو ته یو عمومی نظر ورکوي چه په خپل فصل کی باید څه وګوري. او دا تجربی ته ضرورت لري چه یوه خاصه علامه د خاصی غذایی مادی کمښت ته منصوبه کړی شي . د تجربی په اساس د سبزیجاتو کرونکي او پراختیایی کارکوونکی به پدی وتوانیږي چه د کمښت د علامو لپاره فصل وګوري او ددی معلوماتو څخه استفاده وکړي چه لازمی سرې واخلي.

کله چه په نباتاتو کی د غذایی عنصرونو د کمښت علامی ګورو نو دا مهمه ده چه پوه شو چه ځینی غذایی مواد به نبات کی متحرک وي. هغوی د وړو پاڼو څخه ځوانو پاڼو ته حرکت کولای شي، کله چه د فشار په وخت کی ورته ضرورت پیښ شي. د نایتروجن او پوتاشیم د کمښت په صورت کی، د کم ښت علامی اول په زړو او پخو پاڼو کی ښکاره کیږي (ښکتنی پاڼی). کم متحرک عناصر لکه Ca, S, B, Fe چه د نبات په زړو برخو کی ذخیره کیږي، نشی کولای چه په آسانی سره د نبات نورو برخو ته د فشار په ځواب کی منتقل شي. که ددی عنصرونو کافی مقدار په خاوره کی نه وي چه نوی وده تقویه کړي نو باید د بزګرانو پواسطه د سرې او یا کود په شکل علاوه شي.

**نایتروجن**: پاڼی کم رنګه شین څخه تر ژیړ رنګه پوری ځان ته نیسي . تر ټولو زړی پاڼی اول متاثره کیږي لیکن کله چه کمښت شدید شي نو ټول بوټی ژیړ اوړي. د ښاخونو تشکیل د نایتروجن د کمښت په صورت کی کمیږي او وده یی هم بطی کیږي . زړی پاڼی د اوبو د معمولی فشار په صورت کی مړاوی کیږي.




**فاسفورس**: پاڼی سوربخنه ارغوانی، توربخن شین رنګ نیسی. زړی پاڼی مړی کیږي. Inter nodes لنډ وي او وده یی کمه وي. د ټول نبات وده بطي وي او پخیدل یی ځنډیږي. کاهو، رومیان او د Brassica ډولونه یی (ګلپی، کرم) د ساقی، پیتیول او د پاڼی لاندی برخی یو خاص ارغوانی رنګ اختیاروي.






**پوتاشیم**: زړی پانی په څنډو کی سوی او سختی لکه د څرمن په شکل کیږي . په کچالو او حبوبات کی لمړنی نښی یی دا وي چه پاڼی راقاتیږي، سپین رنګ اوکوچنی داغونه پکی پیدا کیږي.

**کلسیم**: ځوانی پاڼی ژیړی اوړي او بیا نصواري رنګ نیسي . څنډی یی نظر د پاڼی نورو برخو ته ډیر بطی نمو کوي چه باعث ددی کیږی چه پاڼه لاندی خوا ته قات شي. په نبات باندی نوی وده تور رنګ نیسي او له منځه ځي . زړی علامی د کلسیم د کمبود په رومیانو کی د غوټیو د ا نجامونو خوسا کیدل او کاهو کی د څوکو سوزیدل دي.







**مګنیزیم**: پاڼی نری وي، د رګونو تر منځ رنګ د لاسه ورکوي او پورته خواته د قاتیدو میلان پیدا کوي . علایم د نبات د کښتنی برخی څخه پیل کوی او پورته خواته په مخ ځي. په ځینو نباتاتو د براسیکا د کورنی کی لکه ګلپی ، کرم او داسی نورو کی تت نارنجی، ژیړ او ارغوانی رنګ پیدا کیږي.

**سلفر**: د ټول نبات پاڼی ژیړیږي، د ځوانو پاڼو په شمول. د پاڼو لاندی برخی او ډنډری ګلابی رنګ لري. په پرمختللی حالت کی، پاڼی میلان پیدا کوي چه نازکه ، را قات او ماتیدونکی شی.




**بوران**: څنګه چه بوران په اکثره نباتاتو کی په آسانۍ سره حرکت نشی کولای، په قلت کی یی د نبات وده کوونکی څوکی مريږ. نوری علامی یی د کلسیم د کمبود سره مشابهت لري . په هغو نباتاتو کی چه بوران ډیر تحرکیت لري، د کمبود علامی یی اکثراً د نبات په زړو انساجو کی لیدل کیږي لکه د نایتروجن او پوتاشیم په کمښت کی . ساقی تشی یا خالی او په میوه باندی تور ټاکی پیدا کیږي . پاڼی په غیر معمولی شکل ماتیدونکی وی او ځوانی پاڼی اکثراً مری حتی د کافی اوبو سره سره.






**مس**: په کمښت کی پاڼی تاویږي او پتیولونه لاندی خوا ته قاتیږي او که شدید وي د پاڼی څوکی مړی کیږي . ځوانی پاڼی پیکه شین رنګ نیسي او مړاوی کیږي.

**کلورین**: ډیره عامه نښه یی د ځوانو پاڼو رژیدل او مړاوی کیدل دي . ژیړیدل د پاڼی د رګونو تر منځ واقع کیږي. په ډیر پرمختللی حالت کی د پخو پاڼو په پورتنی برخه کی د Bronzing حالت رامنځ ته کیږي.

**اوسپنه**: ځوانی پاڼی د رګونو تر منځ ژیړیږي. بالاخره ټوله پاڼه داسی ښکاری چه ګوندی په بلیچ یا تیزابو باندی مینځل شوی وي . وروسته پکی تور داغونه پیدا کیږي. البته هغه ځای کی نسج مړ وي . د اوسپنی کمښت په Calcareous خاوره کی او غیر هوازی شرایطو کی ډیر عام دي.










**منګانیز**: په ځوانو پاڼو کی د رګونو تر منځ سپین والی پیدا کیږي او څنګه چه فشار زیاتیږي نو پاڼی یو خړبخن، فلزی حالت نیسی او د رګونو په اوږدوالی کی مړه ټکي پیدا کیږي. د پاڼو په پورته برخه کی یو ارغوانی رنګ پیدا کیږي.




**مولبدینم**: لکه څنګه چه مولبد ینیم د نایتروجن په انتقال کی یو ضروری عنصر دی، ددی عنصر د کمښت لمړنی علامی د نایتروجن کمښت سره یو شان وي، بدون د هغه سوربخن رنګ څخه چه د پاڼو لاندی پیدا کیږي. په اکثره نباتاتو کی پاڼی پورته خواته قاتیږي او داغونه پکی پیدا کیږي چه د رګونو تر منځ ژیړ نسج ت ری جوړیږي، البته په شدید حالت کی . په ډیر غلظت کی مولبدینم یو خاص زهری خاصیت لري . پاڼی نارنجی روښانه رنګ نیسي.



**جست**: د جست د کمبود په لمړنیو مرحلو کی ځوانی پانی ژیړیږي او د رګونو ترمنځ د پانی په پورتنی سطحه ژوروالی پیدا کیږي. څنګه چه کمبود پرمخ ځي، نو د رګونو ترمنځ نسج مړ کیږي خو رګونه شنه پاتی کیږي.

### 7.3 د غذایی مواد د کمبود د تشخیص لپاره کلي

د پورتنیو توضیحاتو او عکسونو سربیره، کرونکي یوه ساده وسیله چه د کلي پنامه یادیږي، استعمالولی شي . هم پری کمبود او هم زیاتوالی معلومیږي چه په 4.1 شکل کی ښودل شوی ده. کرونکي او پراختیایی کارکوونکی یی د ځانه سره ځمکو ته وړلای شي . د شکل په یو اړخ په سور رنګ د علامو توضیح ده چه شاید دوی یی د پاڼو لاندینی برخه کی وګوري. دا د کمښت علامی او یا ډیر زیاتوالی چه نبا ت ته زهری تمامیږی توضیح کوي . د چارت بل اړخ په آبی رنګ هغه علامی توضیح کوي چه د ځوانو پاڼو په پورتنی برخه کی پیداکیږي.

پام وکړئ چه تاسی د چارت په دواړو خواوو کی نایتروجن او سلفر لیدلی شيء . دا دواړه د پانی د عمومی ژیړیدو سره تړلی دي. که څه هم د نایتروجن لمړی کمبود به ځوانو پاڼو کی لیدل کیږي، په شدیدو حالا تو کی ټول نبات د سپیره شین نه نیولی تر ژیړ رنګ پوری اختیارولی شي . سلفر د نبات د پخو او ځوانو برخو ترمنځ په اسانی سره حرکت نه کوي. نسبتاً غیر متحرک دی. اولی علامی یی په ځوانو پاڼو کی لیدل کیږي لیکن په شدید حالت کی ټول نبات متاثره کیږي.

د کمبود علامی چه پورته ذکر شوی یواځی په پاڼو کی وي خو چه کله کمبود شدید حالت نیسي نو ټول نبات متاثره کیږی. د مثال په ډول که نباتاتو کی د فاسفورس کمبود رامنځ ته شي نو نمو او وده یی ورو کیږي او کوچني پاتی کیږی. د مسو شدید کمښت باعث ددی کیږي چه وده کوونکی څوکي مړې شي او نبات کوچنی پاتی شي.

د ځینو غذایی موادو کمښت د خاصو فزیولوجیکی تشوشاتو یا بی نظمیو پواسطه په اسانی سره پیژندل کیږي . په ګلپیانو کی د بوران کمښت د خالی منځی ساقی او خړ رنګه مادی سبب ګرزي . د کلسیم کمښت په رومیانو او هندوانو کی د غوټی د نهایت د خوسا کیدو سبب ګرزي . او په ګلپی او کرم کی د څوکو یا نهایاتو د سوځیدو سبب ګرځي. که څه هم دا توضیحات او هم چارت تاسی سره به ساحه کی مرسته کولای شي، د کمښت ځینی علامی ډیری سره ورته وي لکه د Fe, Mn, Zn. د نورو شواهدو استعمال (د خاوری pH، د خاوری بافت یا ترکیب، په ورسره نژدی ونو باندی علامی) تاسی سره مرسته کوي چه ښه تشخیص تر سره کړ ئ. دا تل ښه خبره ده چه خاوره ټست شي او پانی په لابراتوار کی چیک شي ترڅو ستاسی مشاهدات تصدیق کړي . لکه څنګه چه بزګران د سبزیجاتو د ګټو او کیفیت څخه خبریږي، نو شاید دا ډول یو خدمت په راتلونکی کی د مصرف له نظره ښه وي.



د نامـنظمو غذایی موادو د لیدو وړ نښې
پورتنی پاڼې
ښکتنی پاڼې
علامه
کمښت
زیاتوالی
د خوانی پاڼې منحرف کیدل
د پاڼې څنډې نسواری کیدل او یا سوځیدل
د پاڼو د رګونو تر منځ ژیړیدل
د وړه کوونکو نقطو له منخه تلل
General leaf yellowing
د پاڼې د رګونو تر منځ د ساحې نسواری کیدل
د پاڼو د څنډو نسواری کیدل
د پاڼو د رګونو تر منځ ژیړیدل
د پاڼې ارغوانی کیدل
د پاڼې ژیړیدل په عمومی توګه
مس مولبدینیم
کلسیم
اوسپنه منګانیز جست مس
بوران او کلسیم
سلفر (نایتروجن)
پوتاشیم
مګنیزیم
فاسفورس
نایتروجن (سلفر)
د امونیم زهریت
د فاسفورس زیاتوالی
د امونیم زهریت
د منګانیز او یا اوسپنې زهریت
د مالګی زهریت
د پوتاشیم زیاتوالی

## 4. په سرو پوهــېدل

### 1.4 سریزه :

لکه څنګه مو چه په څلورم فصل کی زده کړل، نباتات د خپلی ودی لپاره ضروری عنصرونو ته ضرورت لری . ضروری عنصرونه هر یو د نبات په بیلا بیلو فعالیتونو کی ونده لری . که چیری دا عنا صر د ځمکی د خاوری، هوا او یا اوبو په واسطه ورته مهیا نشی نو بزګران یی ضرور باید د سرو په شکل تطبیق کړي . د ځمکی د حاصلخیزی او ښیرازتوب د سبزیجاتو د تولید یوه مهمه برخه تشکیلوی . نه یواځی د حاصلاتو اندازه بلکه کیفیت یی هم د کافی غذایی موادو په شتون پوری اړه لري.

په دی فصل کی، پراختیایی کارکوونکي د سرو د بیلابیلو ډولونو سره آشنا کیږی چه بزګران یی کولای شی په خپلو فصلونو باندی یی تطبیق کړي . همدارنګه دوی نوی طریقی د سرو د تطبیق او په ساده ډول د کامپوست جوړونه زده کوي او دا هم زده کوي چه څنګه د ضرورت وړ سره محا سبه کړي او په مؤثر ډول د سبزیجاتو ځمکو ته د سرو د علاوه کولو طریقی د نظره تیری کړي.

### 2.4 د سرو دغذایی محتویاتو څرګندول

سری هغه مرکبات دی چه کله پټی ته علاوه شی نو د نبات وده تحریکوی. کیدای شی چه عضوی (یعنی د عضوی موادو څخه جوړه شوی وي ) او یا غیر عضوي وي (چه د منرالونو او غیر عضوی کیمیاوی موادو څخه جوړه شوی وی). کیدای شی چه طبیعی مرکبات وی لکه peat او معدنی ذخایر او یا د مصنوعی طریقو پواسطه تولید شوی وي. دا دواړه ډوله سری د نبات د ودی او پرمختګ سره په شرقی زون کی مرسته کوي.

دا چه څنګه او په کومه طریقه د سروغذایی محتویات څرګند شی (عضوی او غیر عضوی) خلکو ته پوره روښانه نه دی. د نایتروجن لپاره علمی سمبول N دی او په سره کی یی مقدار د N% په شکل ښودل کیږي. که څه هم د فاسفورس سمبول P دی خو په سره کی یی اندازه د $P_2O_5$% په شکل ښودل کیږي او د پوتاشیم لپاره $K_2O$ ښودل کیږي.

هیڅ یوه سره خالصه عناصر لکه N,K,P نه لری. په خالص شکل دا عنصرونه نباتاتو ته بی فایدی وی او ځنی یی حتی ضررناکه وي که پوتاش او فاسفور . نباتات کولای شی چه ددی عناصرو څه په ترکیبی شکل کار واخلی د مثال په توګه نایتروجن باید د آکسیجن دری اتومه سره یوځای شی چه نایترایت Nitrite ورکړي او څلور اتومه هایدروجن سره یوځای شی چه د امونیم شکل ورکړي. په پتاشیم لرونکی سرو کی پوتاشیم خپله یواځی نه وی بلکه د کلورین سره یوځای د KCl په شکل وي. او هم کیدای شی چه آکسیجن او نایتروجن سره یوځای وي لکه پوتاشیم نایتریت $KNO_2$ .

د سروغذایی محتویات او کلسیم او مګنیزیم په عنعنوی توګه د اکساید په شکل کی ښودل کیږي، که څه هم په اکثره حالاتو کی سره اکساید نه لري. له همدی کبله مګنیزیم د MgO او کلسیم د CaO په توګه اندازه کیږي.

د غذایی عناصرو د ښودلو سیستم مغشوش کوونکی دی . لکه څنګه چه دا اوسنی طریقه په نړیواله توګه پیژندل شوی ده او حتی په ځینو ځایونو کی یو قانون دی نو په دی کی بدلون راوستل یو نړیواله هڅی ته ضرورت لري . همدارنګه هغه سري چه اوس ۲۰-۲۰-۲۰ دي هغه به ۱۶-۸-۲۰ شي. چه دا کیدای شی ځنی خلک شکمن کړي چه وپوهیږي چه دا هماغه سره ده چه غوښتنه یی کوي.

څنګه چه مونږه پنځم فصل ته مخ پر وړاندی ځو، نو د منرالونومحتویات د ښودلو طریقه شاید یو څه مفهوم ورکړي.

### 3.4 عضوي ســـــری:

عضوی توری يا لغت په ساده توګه دا معنی ورکوي چه هغه مواد چه په سره کی استعمال شوی هغه د ژونديو موجوداتو د پاتی شونو يا بقاياوو څخه ترلاسه شوي دي. پنبه دانه، وينه، هډوکي او ښکرونه او ټولی حيوانی سری د عضوی سرو مثالونه تشکيلوي.

عضوی مواد په اوږده موده کی غذايی مواد خوشی کوي . ددی احتمالی تاوان دادی چه شايد د تطبيق په اول کال خپل اصلی مواد په کافی اندازه خوشی نه کړي ترڅو د نبات د ښی وده او پرمختګ لپاره کفايت وکړي. لکه څنګه چه عضوی سری د خاوری د ژونديو موجوداتو پوری اړه لري چه په منرالی شکل يی تجزيه کړي . دا سری هغه وخت موثره وي چه خاوره مرطوبه او تودوخه يی ګرمه وي ترڅو د خاوری ژوندی موجودات فعاليت وکړي.

**د فارم حيوانی ســره**

دا ډول سری د بزګرانو پواسطه د پيريو راهسی د بزګرانو پواسطه په سبزيجاتو او دانه بابو باندی استعماليږی . په شرقی زون کی اوس هم د نباتی غذايی موادو يوه مهمه منبع تشکيلوي، که څه هم ترکيبی سری په پراخه پيمانه پيداکيږی. نباتی او حيوانی سری نه يواځی نباتات و ته غذايی مواد تهيه کوي بلکه د عضوي موادو يوه ښه منبع تشکيلوي او هم نور کوچنی عناصر بوټوته برابروی. د خاوری د عضوی موادو ډيرول باعث د لاندو ګټو کيږي:

- د خاوری جوړښت اصلاح کوي
- د شګلنو خاورو د اوبو د ساتلو ظرفيت زياتوي
- په درنو خاورکی د اوبو تخليه يا زهکشی بهتره کوي
- د بطی خوشی کيدونکو غذايی موادو يوه منبع تهيه کوي
- په قلوی ځمکو کی pH راښکته کوي، که چيری په ډيره پيمانه او په منظمه توګه استعمال شي
- د اوبو او باد پواسطه د توږنی يا تخريب عمل کموي
- د ځمکنی ګټورو چينجيانو او نورو ژونديو موجوداتو وده تحريکوي

**غذايی مواد او شتون يی**

په شرقی زون کی اکثره بزګران حيوانی سری استعمالوي . ددوی د غذايی موادو اندازه د حيوان د ډول، د bedding د موادو، ذخيره او پروسس په اساس توپير کوي . 5.1 جدول د حيوانی سرو د غذايی موادو اندازه په حيوانی سرو کی ورکوي. هغه سره چه د نورو موادو سره يوځای شوی وي، د غذايی موادو اندازه يی متوازنه وي او ډير ګټور ژوندی موجودات پکی اوسيږي. بايد دا سره مستقيماً نباتاتو ته ورنکړل شي بلکه د نباتی بقاياوو سره يوځای شي ترڅو د غذايی موادو ترکيب يی په تعادل کی شي او د نبات د سوځيدلو څخه مخنيوی وشي.

لکه څنګه چه مخکی ذکر شو، غذايی مواد چه په حيوانی سرو کی پيدا کيږی دفعتاً د نبات د استفادی لپاره نه موجوديږي بلکه دی پوری اړه لري چه څومره ژر عضوی ماده تجزيه کيږي او منرالی شکل يی خاوری ته خوشی کيږي. عموماً د ۷۰ نه تر ۸۰ فيصدو فاسفورس او ۸۰ نه تر ۹۰ فيصده پوتاشيم د تطبيق څخه وروسته په لومړي موسم کی د حيوانی سری څخه خوشی کيږي.

**1.4 جدول: د حيوانی او نباتی سری د غذايی موادو تقريبی اندازی (د تازه حالت د وزن په اساس)**

| د سری ډول | % Dry matter | Ammonium N (Kg/T) | Total N[a] (Kg/T) | $P_2O_5$ (Kg/T) | $K_2O$ (Kg/T) |
|---|---|---|---|---|---|
| دغوښی غوايی (چه نور فضله جات ونلری) | 52 | 3.5 | 10.5 | 7.0 | 11.5 |
| دغوښی غوايی (چه نور فضله جات ولری) | 51 | 4.0 | 10.5 | 9.0 | 13.0 |
| د لبنياتو څاروي (چه نور فضله جات ونلری) | 18 | 2.0 | 4.5 | 2.0 | 5.0 |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| د لبنیاتو څاروي (چه نور فضله جات ولری) | 21 | 2.5 | 4.5 | 2.0 | 5.0 |
| پسونه (چه نور فضله جات ونلری) | 28 | 2.5 | 9.0 | 5.5 | 13.0 |
| پسونه (چه نور فضله جات ولری) | 28 | 2.5 | 7.5 | 4.5 | 12.5 |
| مرغان(چه نور فضله جات ونلری) | 45 | 13.0 | 16.5 | 24.1 | 17.0 |
| مرغان(چه نور فضله جات ولری) | 75 | 18.0 | 28.1 | 22.6 | 17.0 |
| د مرغانوسره چه د نباتی بقایاوو سره ګډه وي | 45 | 0.5 | 8.5 | 19.5 | 11.5 |
| د لبنیاتو د څارویو سره چه د نباتی بقایاوو سره ګډه وي | 45 | <0.5 | 6.0 | 6.0 | 13.0 |

[a] Total N = Ammonium-N plus Organic N

*Source: Rosen and Bierman, 2005. Nutrient Management for Fruit & Vegetable Crop Production. University of Minnesota Extension Service.*

د نایتروجن شتون د فاسفورس او پوتاشیم څخه یوڅه پیچلی وي ځکه چه په حیوانی سره کی په دوه شکله باندی پیدا کیږي. یو یی عضوی شکل او بل یی د امونیم شکل دی . په حیوانی سره کی نایتروجن اکثراً او په نباتی سرو کی تقریباً همیشه په عضوی شکل پیدا کیږي. یواځی هغه وخت د نبات د استفادی لپاره خوشی کیږي چه عضوی شکل یی تجزیه او منرالی شي. 5.2 جدول کی د منرالیزیشن فکتورونه ورکړل شوی چه دا معلوموي چه د منرالیزیشن څخه وروسته څومره نایتروجن موجودیږي.

د امونیم شکل یا غیر عضوی شکل یی په فوری ډول نباتاتو ته موجودیږي . که د تطبیق څخه ۱۲ ساعته وروسته حیوانی سره دخاوری سره ګډه نه شي نو شاید د نایتروجن یو څه امونیمی شکل د غاز په شکل والوزي . که چیری تازه حیوانی سره په ځمکه باندی د لسو ورځو څخه اضافه پریښودل شي، نو د نایتروجن د امونیمی شکل یواځی ۲۰ فیصده به نباتاتو ته موجود شي. که چیری په مستقیم ډول ځمکی ته علاو ه شی او د خاوری سره ګډه شي نو د ۴۵ نه ۷۵ فیصدو پوری د عمومی نایتروجن (امونیم او عضوی شکلونه یی ) به نبات ته د تطبیق څخه وروسته موسم کی به موجود شي. د هغی حیوانی سری سره چه نباتی بقایاوی ګډی شوی وی نو ضرور نه دی چه په چټک ډول د خاوری سره یوځای شي ځکه چه نایتروجن یی په ثابت حالت کی او آزاد امونیم ډیر لږ وي.

د حیوانی سری د تطبیق پاتی شونکي اغیزی د سبزیجاتو په پټی باندی مهمی دي. د تطبیق په دوهم او دریم کال کی نباتات د کراره خوشی کیدونکو عضوی موادو څخه ګټه اخلي. په عمومی توګه هغه نایتروجن چه په دوهم کال کی خوشی کیږي د لمړی کال ۵۰ فیصده به وي او په دریم کال به ۲۵ فیصده وي. که چیری حیوانی سره په هر موسم کی د څو کلونو لپاره علاوه شي نو په خاوره کی ډیر عضوی مواد جمع کیږي . دا حقیقت باید هغه وخت په نظر کی ونیول شي کله چه د سرو د اداره کولو تصمیمونه نیول کیږي . د وخت په تیریدو سره، بزګران شاید پدی وتوانیږي چه د نایتروجن او فاسفورس مقدار کم کړي چه ځمکی ته د غیر عضوي موادو په شکل علاوه کیږي.

**2.4 جدول: د نايتروجن لپاره د منرالايزيشن فکتورونه**

| وچ وابښه يا نباتی فضله جات | د نايتروجن لپاره د منراليزيشن فکتور **(% available/100)** |
| --- | --- |
| غويی چه نور نباتی مواد ورسره نه وي | 0.35 |
| غويی چه نور نباتی مواد ورسره وي | 0.25 |
| د لبنياتو څاروي چه نور نباتی مواد ورسره نه وي | 0.35 |
| د لبنياتو څاروي چه نور نباتی مواد ورسره وي | 0.25 |
| د پسونو جامد فضله جات | 0.25 |
| د مرغانو، نور مواد نه وي | 0.50 |
| د مرغانو، نور مواد وي | 0.45 |
| Composted dairy د لبنياتو څارو روسته شوی | 0.14 |
| Composted poultry د چرگانو روسته شوی | 0.30 |
| Horse, bedding، آسا ن | 0.20 |

<u>د حيوانی يا نباتی سری د مقدار محاسبه کول چه بايد فصل ته علاوه شي</u>

ټول ساده طريقه د محاسبی يی د بيلانس طريقه ده . فصلونه د ځمکی څخه غذايی مواد اخلی کله چه د تخم څخه وده کوی تر هغی پوری چه پخيدو ته رسيږي . دا چه څومره غذايی مواد د ځمکی څخه اخيستل کيږي خاصتاً N,P,K د حاصلاتو د مقدار په اساس محاسبه کيږي . د مثال په توگه د يو ټن روميانو د توليد لپاره دوه نيم کيلو نايتروجن ته ضرورت دی. د خاصو سبزيجاتو لپاره د غذايی موادو اړتياوی عموماً پيژندل شوی دي (5.3 جدول ته نظر وکړئ). د بيلانس طريقه دا فرضوي چه کرونکی بايد ځمکی ته لږ تر لږه هغومره علاوه کړي څومره چه نبات ورته ضرورت لري. داچه په څه اندازه د موسم په جريان کی څومره مقدار ته ضرورت ليدل کيږي دی پوری اړه لري چه د مخکی نه په ځمکه کی څومره موجود وو. او هم د نبات د ودی په چټکوالی، او د نبات د وړتيا پوری اړه لري چه دا غذايی مواد واخيستل شی او استعمال يی کړي . يو بزگر کولای شی چه د غذايي موادو د اړتياوو عمومی معلومات استعمال کړي او د راتلونکی فصل احتمالی مقدار په اساس دا تخمين کړي چه څومره سری ته اړتيا ليدل کيږي .

> د محاسبی چوکات
>
> فصل: کرم چه په يو جريب کی ۴.۴ ټنه توليديږي
>
> <u>لمړی قدم:</u>
>
> **N: 4.4 T/jerib x 3.5 Kg/T=*15.4 kg/jerib***
> **$P_2O_5$: 4.4 T/jerib x 1.3 Kg/T=*5.7 Kg/jerib***
> **$K_2O$: 4.4 T/jerib x 4.3 Kg/T=*18.9 Kg/jerib***
>
> <u>دوهم قدم:</u>
>
> حيوانی سره **N**: ***10.5 Kg/T***
> حيوانی سره **$P_2O_5$** : ***9.0 Kg/T***
> حيوانی سره **$K_2O$** : ***13.0 Kg/T***

لاندينی مرحلی مونږ ته ښيی چه داکار څنگه ترسره کړو.

لمړی قدم: د يو خاص فصل لپاره د غذايی موادو اړتيا وټاکئ او د راتلونکی فصل ل پاره احتمالی ضرورت تخمين کړئ، د مثال په توگه په يو جريب کی ۴،۴ ټنه کرم، او بيا دا رقم د هری غذايی مادی سره چه د کرم د يو ټن د توليد لپاره ورته ضرورت وي ضرب کړئ (۵، ۳ شکل).

دوهمه مرحله: د حیوانی یا نباتي سری د غذایی موادو اندازه تعینول: که چیری سمپلونه نشت شی نو حقیقی اندازی ورکوي خو کولای شی د لاندی جدول په اساس د تقریبی اندازو څخه کار واخلئ. د مثال په توګه د غوایانو په سره کی چه د نباتی ترکیب ولري په یو ټن کی چه په تازه حالت کی وي، نهه کیلو ګرامه فاسفورس موجود وي.

**3.4 جدول: د N, P, K مقدار چه د یو ټن سبزیجاتو د تولید لپاره ورته ضرورت لیدل کیږي**

| سبزي | Requirement per T Yield (Kg/T) | | | |
|---|---|---|---|---|
| | N | $P_2O_5$ | $K_2O$ | Total |
| رومی | 2.5 | 1.0 | 3.6 | 7.1 |
| شین مرچکی | 2.4 | 0.9 | 3.5 | 6.8 |
| ګازره | 4.0 | 1.5 | 5.0 | 10.5 |
| ملی | 3.0 | 3.1 | 6.0 | 12.1 |
| لبلبو | 2.4 | 1.4 | 6.0 | 9.8 |
| پیاز | 3.4 | 0.9 | 2.8 | 7.1 |
| شنه نخود | 18.9 | 5.6 | 15.2 | 39.7 |
| لوبیا | 12.9 | 2.8 | 11.9 | 27.6 |
| بادرنګ | 1.7 | 1.4 | 4.0 | 7.1 |
| کرم | 3.5 | 1.3 | 4.3 | 9.1 |
| ګلپی | 4.0 | 1.6 | 5.0 | 10.6 |
| کاهو | 4.0 | 1.8 | 5.0 | 10.8 |
| پالک | 3.5 | 1.6 | 5.2 | 10.3 |
| تور بانجان | 5.0 | 2.5 | 2.5 | 10.0 |
| ایرلینډی کچالو | 6.8 | 3.2 | 11.8 | 21.8 |
| لیږوګان | 10.0 | 7.5 | 5.0 | 22.5 |
| هندوانه | 1.2 | 1.7 | 2.5 | 5.4 |

*Source: Unknown*

دریمه مرحله یا قدم: د غذایی موادو موجوده اندازه وټاکی: په یاد ولرئ چه ټول غذایی مواد د تطبیق څخه وروسته په اول موسم کی موجودیږی.

- د فاسفورس ۸۰ فیصده موجودیت او د پوتاشیم ۹۰ فیصده موجودیت
- د نایتروجن لپاره لاندی فورمول استعمال کړئ (د منرالیزیشن فکتور په *5.2* او د نایتروجن عضوی او امونیم شکلونه په *5.1* جدول کی وګورئ.

موجود نایتروجن = (عضوی نایتروجن *x* منرالیزیشن فکتور) + د نایتروجن امونیم شکل

پام وکړئ چه که حیوانی سره تازه وي او په ۱۲ ساعتو کی د خاوری سره ګډه نه شي او د نایتروجن د امونیم شکل حتماً رابښکته کیږي: د ٪۲۰ په اندازه چه د دوه ورځو څخه کم وي، د ۸۰ فیصدو پوری چه د اووه ورځو څخه زیات وي. د نایتروجن عضوی شکل په عین حالت کی پاتی کیږي.

څلورم قدم: حساب کړئ چه د حیوانی سری څومره مقدار ته ضرورت دی تر څو د ضرورت وړ اندازه نایتروجن، فاسفورس او پوتاشیم مهیا کړي . په اولنی قدم کی د غذایی موادو اړتیا په یو ټن کی د موجودو غذایی مادو د کیلوګرامونو سره تقسیم کړئ.

پنځمه مرحله : د حیوانی سری اندازه د څلورمی مرحلی څخه معلومه کړ ئ. اکثراً د نایتروجن او فاسفورس مقدارونه استعمالیږي ترڅو د سرری د تطبیق اندازه و ټاکل شي (عضوی او غیر عضوي). ځکه چه د فصلونو په تولید کی ډیر مهم عناصر دي. دلته په شرقی زون کی د پوتاشیم یواځنی زیرمه منرالونه او حیوانی سره ده. دواړه نایتروجن او فاسفورس د غیر عضوی سرو په څیر علاوه کیږي (DAP, Urea). هغه عوامل چه باید د تصمیم نیولو په وخت کی په نظر کی ونیول شي، چه د تطبیق اندازه د کوم غذایی په اساس وټاکل شي په لاندی ډول دي : د خاوری ظرفیت د مختلفو غذایی عنصرونو په بندولو کی . د یوی غذایی مادی ډیر کم مقدار چه باید تطبیق شي، د نورو منابعو څخه د یو غذایی عنصر لاس ته راتلل او موجودیت.

شپږم قدم : د موجودو غذایی عنصرونو مقدار معلوم کړ ئ چه په هغه مقدار تطبیقیږي چه په پنځمه مرحله کی انتخاب شو . حساب کړ ئ چه د هر غذایی عنصر څومره باید تطبیق شي – انتخاب شوی مقدار په پنځمه مرحله د موجودی تخمین شوې اندازی سره چه په دریمه مرحله کی حساب کړ، ضرب کړ ئ. پام وکړ ئ چه د غذایی عنصرونو ۱۰۰ فیصده اړتیاوی پوره کیږي.

اووم قدم: معلوم کړئ چه آیا اضافی غذایی مواد د نورو منابعو څخه ورعلاوه کیږي تر څو د فصل اړتیاوی پوره شي. هغه مقدار چه د فصل له خوا ورته ضرورت دی (لمړی قدم) د هغه مقدار نه چه به حیوانی یا نباتی سره کی موجود دی (شپږم قدم) منفی کړئ. یو مثبت عدد هغه مقدار ښیی چه باید د نورو منابعو څخه تهیه شي تر څون د فصل ضرورت پوره کړي . دا اووه قدمونه شاید پیچلی په نظر راشي کله چه یی د لمړي ځل لپاره لولیء. بیا پری تیر شیء او بیا هڅه وکړ ئ چه خپله یی د یو بل فصل لپاره ترسره کړئ.

## د محاسبی بکس

<u>دریمه مرحله:</u>

**$P_2O_5$: 9 Kg x 0.8=** ***7.2 Kg/T manure***
**$K_2O$: 13 Kg x 0.9 =** ***11.7 Kg/T manure***
**Available N:**
**Total N = 10.5 Kg/T manure**
**- Ammonium N = 4 Kg/T manure**

**Organic N = 6.5 Kg/T manure**

**Available N= (6.5 x 0.25) + 4 =** ***5.6 Kg/T manure*** (this assumes immediate incorporation)

<u>څلورمه مرحله</u> *4: (Step 1 ÷ Step3 to give T manure/jerib)*
**N: 15.4 Kg/jerib ÷ 5.6 Kg/T=*2.75 T/jerib***
**$P_2O_5$: 5.7 Kg/jerib ÷ 7.2 Kg/T =** ***792 Kg/jerib***
**$K_2O$: 18.9 Kg/jerib ÷ 11.7 Kg/T =** ***1.62 T/jerib***

<u>*5 مرحله :*</u>
Base rate on N and see if other nutrient requirements are met. Apply: ***2.75 T manure per jerib.***

<u>*6 مرحله:*</u>
**N:** ***15.4 Kg/jerib***
**$P_2O_5$: 2.75 T/jerib x 7.2 Kg/T =** ***19.8 Kg/jerib***
**$K_2O$: 2.75 T/jerib x 11.7 Kg/T=** ***32.2 Kg/jerib***

<u>*7 مرحله :*</u> *(Step 1-Step 6)*

| غذایی عنصر | **1** مرحله | **6** مرحله | توپیر |
|---|---|---|---|
| **N** | **15.4** | **15.4** | **0** |
| **$P_2O_5$** | **5.7** | **19.8** | **- 14.1** |
| **$K_2O$** | **18.9** | **32.2** | **- 13.3** |

منفی عدد ښیي چه د فاسفیت او پوتاش زیاتوالی موجود دي

**د حیوانی سرې تطبیق**
دا مهمه ده چه پوه شو چه څنګه حیوانی سره استعمال کړو، مخکی لدینه چه حیوانی سره تطبیق شي باید د نباتی بقایاوو سره ګډه شي، په هغو طریقو سره چه په 5.3.2 برخه کی توضیح شوې دي. د نباتی سری د ډیری په منځ کی لوړ حرارت د هرزه نباتاتو تخم، د حشراتو بچي او نور مضر ژوندی موجودات وژني. هغه حیوانی سره چه د کمپوست یا نباتی ترکیبي سرې سره نه وی ګډه شوي، شاید د هرزه بوټو تخمونه او یا مضره ژوندی موجودات ولري لکه E. Coli چه انسانانو ته هم ضرر رسوي. د هرزه بوټو تخم که چیری د حرارت د لوړې درجی پواسطه ونه وژل شي شاید شنه شي او وده وکړي او د نبات سره د غذایی موادو او اوبو په اخیستلو کی رقابت وکړي. که د پټیو څخه دا هرزه یا مضره بوټی په چټکی سره لرې نشي نو حاصلات کمیږي . خلک شاید ددی سبزیجاتو په خوړلو سره مریض شي چه د حیوانی سرې په تماس کی راغلی وي. که چیری حیوانی سره د نباتی موادو سره نه ګډوئ او خالصه یی پټیو ته علاوه کو ئ نو د سبزیجاتو د کښت څخه یی دری میاشتی د مخه د خاوری سره ګډه کړئ.

د پاڼی لرونکو او ریشی والا سبزیجاتو لپاره چه د خاوری سره په مستقیم تماس کی راځي، لږ تر لږه د سری د آخرنی تطبیق څخه وروسته څلور میاشتی صبر وکړئ او بیا حاصل ټول کړئ.

کمپوست یا ترکیبی سره
کمپوست هغه عضوی مواد دی چه په تدریجی توګه ښه تجزیه شوې وي او نوره د تجزیی وړنه وی . چه عمدتاً منرالونه او توره خاوره پکی وي . د کمپوست لپاره مختلف مواد استعمالیدی شي. د مثال په توګه حیوانی سره او ادرار، شنی او وچی نباتي بقایاوی او واښه، د آشپزخانی فضله جات (سبزیجات، میوی، هډوکی، بدون له غوښی څخه) او ایره ددی لپاره چه د تجزیی عمل موثر اوسي نو اوبو ته ضرورت لري . د اوبو څخه پرته کمپوست جوړول ډیر وخت نیسي او کیفیت یی ه م ښه نه وي. مختلف بکتریاګانی د خاوری ژوندی موجودات لکه چینجي عضوی مواد تجزیه کیږي. په همدی دلیل، هر طریقه چه استعمالیږی د هوا جریان او رطوبت باید موجود وي تر څو نوموړي ژوندي موجودات ژوند وکړي شي. د کمپوست یا د ترکیبی سرې د ډیری په داخل کی د هوا جریان د داخلی حرارت د تنظیمولو سره مرسته کوی او د ترکیبي سري کیفیت اصلاح کوي . د هوا څخه پرته، هغه ژوندی موجودات چه ناروغی پیدا کوي وده کوي او د عضوی موادو د تجزیی عمل داسی مواد خوشي کوي چه نباتاتو ته زهري خاصیت لري. ددی څخه برسیره د غذایی موادو مقدار لکه نایتروجن، سلفر، او فاسفورس کمیږي.

د کمپوست یا ترکیبی سری د جوړولو د پروسې بریالیتوب به لاندی عواملو پوری اړه لري:

- د ژوندیو موجوداتو لپاره په کافی اندازه هوا
- رطوبت چه د تجزیی عمل تسریع کړي
- ژوند ی موجودات او د ځمکی چینجیان
- د شنو موادو (چه په آسانی سره تجزیه کیږي ) او د نصواري موادو ( چه په کمه اندازی سره تجزیه کیږي) یو مناسب مخلوط.
- د ډیری یا ټوپی په داخل کی ۶۰-۵۵ درجو سانتی ګراد پوری د حرارت درجه.

که د آکسیجن په موجودیت کی نو ښه کمپوست یا ترکیبی سره لاس ته راځي چه د مرخیړیو په شان بوی کوي او که نه نو بیا بد بوی کوي. بهېخ او ښه جوړ شوې کمپوست تیټګ نصواری رنګ لري . په ښه کمپوست کی د هوا لاری، کوچنی کوچنی ذرات د لیدو وړ وي.

کله چه تیار شو نو کمپوست په مختلفو طریقو سره تطبیق کیدی شي:

- د ځمکی په سطحه علاوه کیږي
- د عضوی ملچ په حیث چه د اوچتو بسترونو سطحه پوښوي
- د مخلوط د یوې برخی په حیث (د شګی او د ځمکی د پورتنی طبقی په شمول ) چه د بزغلیو د تولید لپاره په ګلخانو او قوریو کی استعمالیږي.

لکه څنګه چه مخکی وویل شو دا مهمه ده چه مخکی د تطبیق څخه حیوانی سره کمپوست شی کیدی شي چه حیوانی سره په یوائې توګه په لاندی طریقو سره او یا په مخلوط ډول سره په ترکیبی شکل تیاره شي:

**د لرګی د چوکات کمپوست**




ددی چوکات په دننه کی کمپوست جوړیدی شي چه د لرګی او یا بانګس څخه جوړ شو ئ وي. حجم یی ۱.۵ متر په ۱.۵ متر په ۱.۵ متره کی وي . یو اړخ یی خلاص وي . دا طریقه به خاصه توګه هغه ځای کی استعمالیږي چیرته چه اوبه محدودی وي . لکه څنګه چه ډیری اوبه نه استعمالیږي، نو د کمپوست کیفیت ښکته وي.

د چوکات په داخل کی د موادو ډولونه په متبادل ډول په طبقو کی ایښودل کیږي : نباتی بقایاوی، حیوانی سره او بیا خاوره. لکه څنګه چه په 5.1 شکل کی ښودل شوی، د نباتی بقایاوو طبقه تر ټولو ضخیمه وي. ددی طریقی نه په استفادی سره، د تجزیی پروسه ۵ نه تر ۶ میاشتو پوری نیسي. هر دوه میاشتی بعد باید ډیری واړول شي او لږ څه اوبه هره اونی ورعلاوه شی .




**د سوری یا خندق کمپوست**

د ډیری ځمکی لپاره دا طریقه د کمپوست د ډیر مقدار د تولید لپاره د ډیرو ښو طر یقو څخه یوه ده . دری یا څلور غټ سوري یا کندی (۷م په ۸م په ۲م کی) د سبزیجاتو د یو غټ فصل لپاره په کافی اندازه کمپوست تولیدوي. نباتی بقایاوی، وچی پاڼی او واښه او حیوانی مواد په ترتیب سره په طبقو کی ایښودل کیږي او هره نباتی طبقه باید د ۵۰ نه تر ۶۰ سانتی پوری ژوروالی ولري.

کله چه ډیر خندقونه وي، هر یو یی په جلا توګه اداره کیدای شي . او کله چه لږ تر لږه دری خندقونه موجود وي، کیدای شی چه په دورانی شکل اداره شي . په دورانی سیستم کی چه کله لمړی خندق ډک شو مواد دوهم سوری یا خندق ته اړول کیږي او محتویاتو ته یی رطوبت ورکول کیږي . او بیا لمړی کنده یا سوری دوباره ډکیږي. کله چه لمړی کنده دوباره ډکه شوه، نو د دوهمی کندی څخه مواد دریمی ته اړول کیږي او د لمړي څخه دوهمی ته اړول کیږي . لمړی کنده بیا ډکیږي. هغه وخت چه لمړئ کنده د دریم ځل لپاره ډکه شي، د کمپوست پروسه آخرني کندی کی بشپړیږي او عضوی مواد یی ځمکی ته انتقالیدی شي.




**Figure 3: د کمپوست چینایی طریقه**

**د چینایی کمپوست د ډیرۍ طریقه**

دا یوه ښه طریقه ده البته د کوچنی پیمانی فارم لپاره . کمپوست په یو لنډې مودی کی تیار وي – تقریباً ۳ نه تر ۴ اونیو پوری. د تولید شوو موادو اندازه ښکته وي نو یوائې په کوچنیو ساحو باندی تطبیق کیدی شي. ډیرۍ یو بی ساری مخروطی شکل لري. چه یو متر ارتفاع او یو نیم متر شعاع لري . هغه ساحه چیرته چه ډیرۍ جوړیږي باید پاکه شي او د یوی سری پواسطه په ښه شي . یوه دایروی ساحه چه یو نیم متر سعاع ولری باید محدوده شي . په مرکز کی یو متر اوږد لرگی باځ و ټومبل شي په ځمکه کی. لمړی طبقه د نباتی بقایاوو څخه (چه د ۲۰ نه تر ۲۵ سانتی ژوره وي) جوړیږي او بیا پری ۵ نه تر لسو سانتی پوری حیوانی مواد شیندل کیږي . دا دواړه طبقی باید مخلوط شی او اوبه ورعلاوه شي. دا پروسه باید تر هغه تکرار شي تر څهو چه ډیرۍ د یو نه تر دوه مترو لوړوالی ته ریسږي. ډیرۍ ته باید د مخروط شکل ورکړل شي. دا سیستم ډیری اوبه غواړي چه په منظمه توگه باید ورکړل شي. که ډیر د خاوری پواسطه و پوښل شي نو خارجی برخه یی ښه کمپوست کیږي . په نورماله توگه ډیرۍ باید په اونی که یو ځلی واړول شي او طبقی یی یو د بل ځای ونیسی تر څو په نوبت سره هره طبقه په مرکز کی راشي.

**د کمپوست شدیده ډیرۍ**




**Figure 5.4: Intensive compost pile method**

دا طریقه د کمپوست ډ ډیر مقدار د تولید لپاره توصیه کیږي. لمړی مرحله یی داده چه یوه ساحه انتخاب او پاکه شي چه د ساحی لویوالی د ډیرۍ په اندازه وي. بیاد باید یوه مستطیلی ساحه په نښه شي چه اووه په اتو مترو کی وي او د ۲۰ تر ۲۵ سانتی پوری باید وکیندل شي . د یو اوږد اړخ په امتداد دری اوږه لرگي باید په ځمکه کی د ټومبل شي . د سرحد چاپیره، دوه قطاره خښتی باید کیښودل شي تر څو ډیرۍ احاطه کړي . نباتی او حیواني بقایاوی باید په متبادل ډول په طبقو ک ی کښیښودل شي لکه څنگه په نورو طریقو کی کیږي. هره نباتی طبقه باید څه نا څه ۰.۵ متره ژوره وي. او د حیوانی طبقی ژوروالی کیدای شی چه د ۲۰ نه تر ۲۵ سانتی پوری وي. د دوه طبقو تر منځ اوبه باید وپاشل شي. کله چه د ۳.۵ نه تر څلورو مترو لوړوالی ته رسیږي، نو ټوله ډیرۍ باید د ۵ سانتی خاوری پواسطه وپوښل شي. د ډیرۍ د پورتنۍ برخه ابعاد باید څه نا څه ۴ په ۷ مترو کی وي ترڅو ډیرۍ د مخروط په شکل ښکاره شي. کله چه ډیرۍ د خاوری پواسطه وپوښل شوه، نو دری ټومبل شوي پایی یا ستنی باید ایسته شي او دری د تهویی کانالونه پاتی شی تر څو د ډیرۍ په داخل کی د تودوخی درجه تنظیم کړي. ددی غټی ډیرۍ خطر دادی چه د حرارت درجه کیدای شی چه ډیره لوړه لاړه شي او باعث ددی شي چه کمپوست وسوځي.

په دی طریقه کی د ډیرۍ اړولو ته ضرورت نشته. کمپوست باید د ۶ نه تر ۸ اونیو پوری تیار او آماده وي. په دی سیستم سره د کمپوست ډیر مقدار تولیدیدای شي خو د نباتی بقایاوو ډیر مقدار ته هم ضرورت لري. د ځینو بزگرانو لپاره دا مشکله ده چه داسی یوه ساحه پیدا شي چه یو غټ کمپوست پکی جوړ شي. هر څومره چه د پټیو سره نژدی وی هماغومره ښه وي ځکه چه انتقال یی آسانه وي.

## 4.4 غیرعضوی مصنوعی سری

په صنعتی توگه د هغو عناصرو څخه جوړیږي چه د نباتی ودی او پرمختگ لپاره ضروری وي . یوریا او DAP دوه عامی موجودی غیر عضوی سری دی په شرقی زون کی . به عمومی توگه غیر عضوی سری په چټکی سره نظر عضوی سرو ته د نباتاتو پواسطه جذبیږي ځکه په اوبو کی منحل وي او د خا وری ژوندی موجوداتو ته ضرورت نشته چه تجزیه یی کړي . د خاوری جوړښت په هغه اندازه چه عضوی سری یی اصلاح کوی، نشی کولای. دا سری کولای شی چه د خاوری کیمیاوی خواصو کی بدلون راولي لکه د خاوری pH خو دا خپله کیدای

شی چه د ځینو غذایی عنصرونو موجودیت او شتون متاثره کړي او په ځینو ژوندیو موجوداتو لکه چینجیو باندی هم بد تاثیرات وکړي. دا ډول سری په بازار کی په ډیره اندازه پیدا کیږي او نسبتاً ارزانه وي.

**د سری تجزیه**

سری د هغی تجزیی پواسطه پیژندل کیږي چه د بوجی د پاسه ورکړل شوی وي . دا ټولی تجزیی دری شمیری لري: چه د نایتروجن، فاسفیټ او پوتاش فیصدی د وزن په حساب په ترتیب سره ښیي . که په ځینو بوجیو باندی د N,P,K څخه د عنصرونو د ښودلو لپاره استفاده شوی وي، نو باید په یاد ولرو چه فاسفورس د فاسفیټ په بڼه او پوتاشیم د $K_2O$ په شکل اندازه کیږي . د مثال په توګه که چیری مونږ ۵۰ کیلو سره ولرو چه ۱۰-۱۰-۱۰ پری لیکل شوي وي نو دا په دی معنی ده چه ۵ کیلو نایتروجن، ۵ کیلو فاسفیټ او ۵ کیلو پوتاش لري. او د بوجی پاتی برخه فقط د ډکوونکو موادو څخه ډکه شوی وي تر څو په پټی کی یی استعمال آسانه کړي . دا آسانه دی چه د هغی سری لوی مقدار په پټی کی په مساویانه توګه وپاشل شي چه تجزیوی اندازی یی کمی وي نظر هغه ته چه ډیری وي. ځینی سری د غیر فعالو مادو پواسطه پوښل شوی وي تر څو په ځمکه کی یی آزادیدل بطي کړي، تر څو فصل ته د اوږدی مودی لپاره غذایی مواد تهیه کړي.

**مکملی سری او نامکملی سری**

سری ته هغه وخت مکمله ویل کیږي چه فاسفورس، نایتروجن او پوتاشیم ولري (۱۰-۱۰-۱۰، ۱۶-۱۲-۱۱، ۲۰-۱۰-۱۰ او داسی نور). غیر مکمله سره هغه ده چه د اساسی عناصرو یو یا دوه ولري . مثالونه یی ټریپل سوپر فاسفیټ (۰-۴۵-۰)، پوتاشیم نایتریت (۴۴-۰-۱۳)، یوریا (۰-۰-۴۶) او DAP(۰-۴۶-۱۸). دا نامکملی سری هغه وخت استعمالیږی چه د خاور تست دا وښیي چه خاوره د یوه یا دوه عنصرونو څخه غنی ده . د مثال په توګه که د خاوری تستونه د فاسفورس او پوتاشیم لپاره لوړ مقدارونه وښیی نو یواځی د نایتروجن سره لکه (۰-۰-۴۶) یوریا او یا امونیم نایتریت (۰-۰-۳۴) شاید توصیه شي.

تر ټولو عام ه سره چه په شرقی زون کی د بزګرانو پواسطه استعمالیږي د DAP سره ده چه نایتروجن او فاسفورس لري او یوریا چه یواځی نایتروجن لري . سبزیجات پوتاشیم ته ضرورت لري چه د خاوری څخه یی استخراجولای شي. خو که دا پوتاشیم ناکافی وي نو په بازار کی داسی سره نشته چه پوتاشیم ولری او حیوانی سره یی یواځینی منبع ده . پراختیایی کارکوونکی او کرونکی باید مربوطه تجاران وهڅوي چه نوری پوتاش لرونکی سری لکه پوتاشیم نایتریت (۴۴-۰-۱۳) او یا پوتاشیم کلوراید (۶۰-۰-۰) د ضرورت په اساس لکه د هندوانو د ښه کیفیت لپاره واردی کړي . ځینی سری ګډیدلای شی تر څو دری واړه عنصره پکی موجود شي . مثالونه یی ۱۵-۱۵-۱۵ او ۱۶-۲۲-۱۱ دي. بزګران ضرورت لري چه مخلوطی سری د قیمت له نظره تجزیه کړي . د مثال په توګه پوتاشیم نایتریت د پوتاشیم د ذخیری یوه غنی او ارزانه منبع ده نظر مخلوطی سری ته لکه ۱۵-۱۵-۱۵.

5.4جدول د عامو سرو لست ورکوي او ترکیب یی هم ښیی . اکثره سری چه دلته لست شوی، تیزابی کوونکی دي.یعنی د خاوری پی ایچ ښکته کوي نو په خفیفاً او متوسطاً قلوی خاورو کی یی استعمال مناسب وي چه داسی خاوری دلته شرقی زون کی پیدا کیږي.

د سری شکل

سری په ډیرو شکلونو او جسامتونه کی راځي. DAP او یوریا په شرقی ولایت کی د جامدو دانو په شکل راځي. د تولید د پروسی په جریان کی تولیدوونکی د سری خام مواد داسی پروسس کوي تر څو نهایی محصول یی غټی، مساویانه دانی ولري. دانی اسانه وي چه په مساویانه توګه په خاوره کی واچول شي. کله نا کله دا دانی داسی پوښل شوي وي چه د رطوبت د جذب مخه ونیسي ځکه چه ځینی سری د رطوبت جذبوونکی وي.

بل شکل یی چه په زراعت کی استعمالیږي مایع شکل دی. کیدای شی چه مکملی او یا نامکملی وي. دا ټولی داسی جوړی شوی وي چه د اوبو سره مخلوطیږي، ځینی یی غلیظی وی او ځینی نوری یی د پوډر په شکل وي . دا محلولونه اکثراً د پیل کوونکی په شکل کار د بزغلیو د تولید او کښت لپاره کوي . ددی محلولونو غذایی مواد د ریشو او نباتی چټکی ودی و تثبیت لپاره په چټکی سره آماده وي . کیدای شی چه مایع سره د نباتاتو پاڼو ته علاوه

شي. خصوصاً د کوچنیو غذایی موادو (micronutrients) د تطبیق لپاره. چه د مستقیماً د پانی له لاری جذبیږي او نبات ته سمدلاسه ورسیږي.

| سره | %N-%$P_2O_5$-%$K_2O$ | شکل |
|---|---|---|
| امونیم نایتریت[a] | 34-0-0 | دانه دار |
| یوریا[b] | 46-0-0 | دانه دار |
| مونو امونیم فاسفیت (MAP) | 12-51-0<br>11-52-0<br>10-50-0 | جامدی دانی |
| (DAP)[c] | 18-46-0 | جامد، دانه دار |
| تریپل سوپر فاسفیټ[d] | 0-45-0 | جامد، دانه دار |
| پوتاشیم کلوراید - پوتاش | 0-0-60<br>0-0-62 | کرستلی، رطوبت جذبوونکی |
| پوتاشیم نایتریت | 13-0-44 | جامد، دانه دار |
| امونیم سلفیت | 21-0-0-24<br>20-0-0-24<br>19-2-0-22 | کرستلی<br>دانه دار<br>دانه دار |
| عنصری سلفر[e] | 0-0-0-90 | پودر |

a د فرار پواسطه کم ضایع کیږي نظر یوریا ته کله چه وشیندل شی او خاوری سره گډ نه شي
b د فرار ضایعات ډیر وی کله چه یوریا په قلوی، وچو ځمکو باندی واچول شی او د خاوری سره گډه نه شي
c د فاسفورس موجودیت نباتاتو د مونو امونیم فاسفیت سره مشابه وي، کله چه د تخم سره کښینوډل شي د MAP په نسبت ډیر زهری وي
d د فاسفورس موجودیت نظر فاسفورس سری ته چه امونیم ولری کم دی
e باید په سلفیت اکسیدایز شي مخکی لدینه چه نبات یی استعمال کړي. د فصل د استعمال څخه یی یو کال د مخه تطبیق کړئ

د سری د تطبیق اندازی

د غیر عضوی سری د مقدار د تع ین لپاره چه د فصل لپاره ضرور وي، د بلانس طریقه استعمالیدی شي . په یاد ولرئ په دی طریقه کی دا فرض شوی چه کرونکي په دی پوهیږی چه د غذایی عنصرونو N,P,K څومره مقدار ته ضرورت دی چه یو ټن تولید ورکړي . ددی لپاره چه تخمین یو څه دقیق وي، بزگران باید نور فکتورونه هم په نظر کی ولري: د نبات د ودی اندازه او چټکوالی، په محلول کی د غذایی عنصرونو موجودیت، د نبات ظرفیت د مختلفو غذایی موادو په جذبولو کی، د اوبونی د اوبو کیفیت او مخکینی طریقی او عملونه په خاصه توگه د حیوانی او ترکیبی سرو مقدار چه په هر فصل کی پټیو ته علاوه کیدلی. دا د غیر عضوی سرو محاسبه ډیره پیچلی کوي.

عین اووه مرحلی یا قدمونه د یو لږ څه تغیر سره استعمالیږي تر څو د سرو مقدار تخمین شي . د سبزیجاتو د فصلونو د غذایی موادو اندازه باید د 5.3 جدول څخه واخیستل شي. 5.4 جدول ته د عامو سرو د غذایی عنصرونو د اندازو لپاره مراجعه وکړئ.

د سری د تطبیق د مقدار د محاسبه کلولو مراحل لاندی ذکر شوي دی. او یو مثال یی په چوکاتونو کی ورکړل شوی دی.

لمړۍ مرحله: د سریجاتو د فصل د غذایی موادو اړتیا معلومه کړ ئ: د راتلونکی فصل لپاره د حاصلاتو احتمالی اندازه تخمین کړ ئ، د مثال په توګه ۹.۲ ټنه رومیان په یو جریب کی او بیا دا رقم د هر غذایی عنصر د هغه مقدار سره ضرب کړئ چه د یو ټن د تولید لپاره په کار وی . 5.3 جدول

دوهمه مرحله : د سری د غذایی موادو محتوی معلومه کړ ئ: د سری ډول چه تطبیقوئ یې معلومه کړ ئ (په شرقی زون کی یواځی DAP او یوریا شتون لري)، د غذایی عنصر فیصدی د بوجی د پاسه لیکل شوی وي لکه $\%N, \%P_2O_2$ او $K_2O$. او یا 5.4 جدول ته رجوع وکړ ئ. د DAP لپاره د غذایی موادو محتوي $P_2O_2$ $18\%N, 46\%$ او $0\ K_2O$ وي. نو په ۵۰ کیلویی بوجی کی ۹ کیلو نایتروجن، ۲۳ کیلو فاسفورس د فاسفیټ په شکل او هیڅ پوتاشیم وي.

| د محاسبی چوکات | |
|---|---|
| فصل: د رومیانو تولید، ۹.۲ ټنه په یو جریب کی | |
| <u>اوله مرحله:</u> | |
| **N: 9.2 T/jerib x 2.5 Kg/T = *23 Kg/jerib*** | |
| **$P_2O_5$: 9.2 T/jerib x 1 Kg/T = *9.2 Kg/jerib*** | |
| **$K_2O$: 9.2 T/jerib x 3.6 Kg/T = *33.1 Kg/jerib*** | |
| <u>دوهمه مرحله:</u> | |
| **DAP : 18-46-0 ;** | **Urea : 46-0-0** |
| **(50 Kg bag)** | **(50 Kg bag)** |
| **N: 9 Kg** | **N: 23 Kg** |
| **$P_2O_5$: 23 Kg** | **$P_2O_5$: 0** |
| **$K_2O$: 0** | **$K_2O$: 0** |
| <u>دریمه مرحله:</u> | |
| **All calculated in Step 2 is available** | |
| **<u>DAP : 18-46-0</u>** | **<u>Urea : 46-0-0</u>** |
| **N: 9 Kg** | **N: 23 Kg** |
| **$P_2O_5$: 23 Kg** | **$P_2O_5$: 0** |
| **$K_2O$: 0** | **$K_2O$: 0** |

دریمه مرحله : د سری موجود غذایی عنصرونو اندازه معلومه کړئ: په یاد ولرئ چه په صنعتی سره کی سل فیصده غذایی مواد باید د نبات لپاره موجود وي، مګر دا چه د خاوری څخه ومینځل شي او یا د فاسفورس په شان بند شي.

څلورمه مرحله: حساب کړ ئ چه د نایتروجن، فاسفیټ او پوتا ش د ضرورت وړ اندازی د تهیی لپاره څومره سره لګیږي.

- د غذایی موادو اړتیا (د اولی مرحلی څخه) د موجوده غذایی موادو په کیلوګرامونو باندی چه ۵۰ کیلویی بوجی کی موجود وي، وویشی.

**Calculation Box**

<u>څلورمه مرحله: دوهمه مرحله تقسیم د دریمی مرحلي</u>

**<u>DAP</u>**
**N: 23 Kg/jerib/ 9 Kg/bag=*2.5 bags/jerib***
**P2O5 : 9.2 Kg/jerib/23 Kg/bag = *0.4 bags/jerib***
**K2O: 0**

**<u>Urea</u>**
**N: 23 Kg/jerib/ 23 Kg/bag=*1 bag/jerib***
**P2O5 : 0**
**K2O: 0**

<u>پنځمه مرحله:</u>
لکه څنګه چه *DAP* یواځی فاسفورس تهیه کوي، نو د سری د تطبیق اندازه باید د *DAP* څخه د علاوه کیدونکی فاسفورس په اندازی پوری اړه ولري. په جریب باندی ۰.۴ بوجی

پنځمه مرحله: د څلورمه مرحلی څخه د سری اندازه چه باید تطبیق شی واخلی: تصمیم ونیسی چه آیا د تطبیق اندازه د نایتروجن، فاسفیټ او پوتاش په اساس ترسره کړ ئ. اکثراً د نایتروجن اندازه استعمالیږي ځکه چه دا د لوړو حاصلاتو د تر لاسه کولو لپاره تر ټولو ډیر مهم عنصر دی. فکتورونه چه په تصمیم نیولو کی یی باید په پام کی ونیسی دادي : د خاوری ظرفیت د مختلفو غذایی عنصرونو په بندولو کی، ددی احتمال چه کیدای شی یو عنصر ډیر زیات مقدار تطبیق شي، د یو غذایی عنصر اهمیت او د نورو منابعو څخه یی په لاس راتلل. په شرقی زون کی د فاسفورس یواځینی منبع چه ډیره استعمالیږي DAP ده.

په دی مثال کی پوتاشیم باید د خاوری یا د حیوانی سرې څخه تهیه شي. لکه څنګه چه نوری سری په بازار کی پیدا کیږي، نو محاسبې باید دا دری واړه عنصره په نظر کی ونیسي.

شپږمه مرحله: د هغه غذایی موادو یا عنصرونو موجود مقدار معلوم کړ ئ چه په پنځمه مرحله کی د انتخاب شوي سری پواسطه تهیه کیږي . ددی لپاره چه محاسبه کړ ئ چه څومره غذایی مواد تهیه کیږي، نو د پنځمی مرحلی اندازه د دریمی مرحلی د اندازی سره ضرب کړئ.

د محاسبې چوکات

<u>Step6</u>*: Step 5 x Step 3*

د **DAP** ۰.۴ بوجی لاندی مقدار تهیه کوي:
**N: 0.4 bag x 9 Kg/bag = *3.6 Kg/jerib***
**P2O5 : 0.4 bag x 23 Kg/bag = *9.2 Kg/jerib***
**K2O: 0**

<u>*Step 7 :*</u> *(Step 1-Step 6)*

| Nutrient | Step 1 | Step 6 | Difference |
|---|---|---|---|
| N | 23 | 3.6 | + 19.4 |
| $P_2O_5$ | 9.2 | 9.2 | 0 |
| $K_2O$ | 33 | 0 | + 33.1 |

مثبت عدد هغه مقدار غذایی مواد ښیي چه د نورو منابعو څخه باید تهیه شي تر څو د فصل ضرورت رفع شي. منفی عدد دا ښیي چه د انتخاب شوی سری پواسطه د ضرورت نه اضافی غذایی مواد مهیا کیږي.

اوومه مرحله : معلوم کړ ئ چه آیا د نورو منابعو څخه اضافی غذایی مواد باید تهیه شي تر څو د فصل ضرورتونه پوره کړي: هغه مقدار غذایی مواد چه د فصل پواسطه ورته ضرورت وی (لمړی مرحله) د غذایی موادو د هغه مقدار څخه تفریق کړ ئ چه د سری پواسطه مهیا کیږي (شپږمه مرحله ). مثبت عدد هغه مقدار غذایی مواد ښیي چه د نورو منابعو څخه باید تهیه شي تر څو د فصل ضرورت رفع شي. منفی عدد دا ښیي چه د انتخاب شوی سری پواسطه د ضرورت نه اضافی غذایی مواد مهیا کیږي.

پام وکړئ چه د رومیانو په مثال کی د نایتروجن او پوتاش اضافی مقدار باید د نورو منابعو څخه تهیه شي. فی الحال، د پوتاش یواځینی زیرمه حیوانی سره ده. محاسبه باید تر سره شی چه ولیدل شي چه څومره حیوانی سره باید علاوه شي تر څو د فصل د پوتاش ضرورت مرفوع شي . یو څه اندازه نایتروجن هم پدی کی علاوه کیږي. د نایتروجن پاتی برخه چه د DAP او حیوانی سری پواسطه نه وی تهیه شوی، د یوریا پواسطه تهیه کیږي . لکه څنګه چه ټول فاسفورس چه ورته ضرورت وي د DAP پواسطه تهیه کیږي او هغه فاسفورس چه د حیوانی سری څخه لاس ته راځي د فصل د اړتیا څخه ډیر وي . د مشرقی په متوسطه او قوی القلی ځمکو کی چیرته چه فصلونو ته لږ پوتاشیم رسیږی، دا باید یوه ستونزه نه وي.



## 5.4 د سری د تطبیق طریقی او وختونه

### د تطبیق طریقی

د تطبیق مختلفی طریقی شته چه د سری په شکل، د فصل په ضرورتونو او د تطبیق په وخت پوری اړه لري . په مشرقی کی تر ټولو عامه طریقه د سری شیندل (Broadcast) طریقه ده . په دی طریقه کی د سری توصیه شوی مقدار په ټاکلی ساحه باندی پاشل کیږي او په بیلچی، رمبی او یا تراکتور سره د خاوری سره ګډیږي. معمولاً دا طریقه د کښت څخه د مخه، د ځمکی د چمتو کیدو په جریان کی سرته رسی اما په اوچتو بسترونو یا جویچو باندی د بستر د جوړیدلو څخه وروسته تر سره کیږي.

**2 شکل: د امونیم نایتریت پاشل د ځمکی په سطحه**
ددی طریقی گټی دادي چه لږ وخت پکی مصرفیږي او کم کارگر غواړي . یو نقص یی دادې چه په یوه پراخه ساحه باندی شیندل کیږی او غذایی مواد د ریشو د ساحی څخه بهر پریوځی.

**Banding** : سره د کښت په وخت کی استعمالیږی خو پام باید وشي چه د تخم سره په مستقیم تماس کی را نشي . ځینی سرې خصوصاً نایتریت لرونکی سری د تخم د سوزیدو باعث گرزي، د شنه کیدو څخه یی مخه نیسي او یا د ځوانو تیغو ریشي سوځي . پدی طریقه کی سره په کوچنیو چرو کی داسی کینودل کیږي چه د نبات د تخمونو یا بوټی څخه ۴-۲ سانتي متره ژوروالی ولري او د تخم د قطار څخه ۸ سانتی فاصله ولري . کله چه سره د ځمکی د سطحی څخه لاندی تطبیق شي باید د یو څه لږی خاوری پواسطه وپوښل شي . دا طریقه د فاسفورس د تطبیق لپاره توصیه شوی طریقه ده چه په متوسطه او قوی قلوی ځمکو باندی علاوه کیږي. کله چه د فاسفورس سره په خاوره وشیندل شي او د خاوری سره گډه شي ، د فاسفورس اکثره برخه د خاوری پواسطه قیدیږي او فوراً نباتاتو ته نه مهیا کیږي. د بینډنگ په طریقه کی د فاسفورس د غلظت په زیاتولو سره د ریشو ساحی ته نژدی کیږي د نبات استفادی ته مهیا کیږي. وچه سره د نبات دقطارو په امتداد وروسته لدینه چه نبات را څرگند او فعاله وده وکړي په جانبی شکل تطبیق کیږی . او یا هم به موضعی توگه د نبات په قاعده کی تطبیقیږي . جانبی تطبیق د اضافی نایتروجن د تطبیق لپاره د ودی د موسم په جریان کی استعمالیږي. دا باید د قطار به اړخ او یا په اوچتو بسترونو باندی تطبیق شي چه د نباتی قطار څخه ۲۰ سانتی فاصله ولري. نایتریت سرې باید وچی ځمکی ته علاوه نه شي او باید په احتیاط سره د خاوری سره یوځای شي . موضعی تطبیق هم مشابه دی خو پام باید وشي چه هغه سره چه د نبات سره نژدی علاوه کیږي د ریشو د سوځیدلو باعث ونگرځي.



**Figure 1: امونیم نایتریت د بینډنگ په طریقه**
*Source: Koenig and Rupp, 1999*

د ځینو عناصرو لکه د اوسپنی د تطبیق لپاره توصیه شوي طریقه خصوصاً په قلوی ځمکو کی د پاڼو له لاری ده . هغه سرې چه د پاڼو له لاری تطبیقیږي، هغه رقیق محلولونه دي او مستقیماً د پاڼو پواسطه جذبیږي او په سمدستی توگه د نبات استفادی ته مهیا کیږي. د تطبیق څخه څو دقیقی وروسته جذب پکی کیږي. اکثراً غذایی مواد د محلول په یوه الی دوه ورځو کی په مصرف رسیږي . د سرو تطبیق پدی طریقه ځمکی ته **K,P,N** رسولی شي خو د نومړو عناصرو د ساحوي تطبیق تعویض نه شی کیدی . په پاڼو باندی د غذایی مواد د سپری نباتاتو ته سمدلاسه غذایی موا د تهیه کولای شو خو پام باید وشي چه په لوړ غلظت سره دمایع سرې تطبیق د پاڼو د سوزیدلو سبب گرځي.
**پیل کوونکی محلول**(Starter) سری په اوبو کی منحلی وي، معمولاً فاسفورس یی لوړ وي د بزغلی د کرلو په وخت کی د ریشو شاوخوا تطبیقیږي تر څو د ریشو وده او د نبات تثبیتیدلو ته چټکتیا وروبخښي.

د بسرلی په لمړیو برخه کی وده اکثراً د یخی ځمکی په وجه محدوده شوې وي، حتی که هوا گرمه هم وي . دداسو شرایطو لاندی د ځمکی ژوندی موجودات فعالیت نه کوي او عضوی مواد به داسی شکلونو نشی تبدیلولی چه ریشی یی جذب کړي. پیل کوونکی محلول چه یا د ریشو د لاری تطبیق شي او یا په پاڼو تطبیق شي د کرل شوو بزغلیو سره مرسته کوي چه په یخه ځمکه کي تثبیت شي.

د سرى د تطبيق وخت

د خاورى ډول او د نبات د ودى مرحله مونږ ته د سرى د تطبيق تکرار ټاکي. اوبه د شګلنو خاورو څخه په چټکى سره تيريږي او غذايى مواد ترى لرى کوي خصوصاً د ريشو د ساحو څخه لاندى نايتروجن . هغه فصلونه چه په شګلنو خاورو کى کرل کيږي نظر هغو ته چه په درندوخاورو کى کرل کيږي، ډير مکرره سره ورکول غواړي.

د ودى د موسم په دوران کى غذايى مو ادو ته د فصل اړتياوى د سرو د تطبيق په وخت باندى تاثير کوي . په عمومى توګه ريشوى فصلونه نظر پاڼى لرونکو فصلونو ته کم نايتروجن ته ضرورت لري . د فصل د ودى او انکشاف په وخت کى په متقا طع ډول نايتروجن تطبيق شي تر څو په کافى اندازه نايتروجن د نبات د ودى او انکشاف لپاره مهيا شي. د ځينو فصلونو لپاره لکه د تورو بانجانو فصل چه ډير اوږد موسم لري، سره نه يواځى د ضرورت وړ مقدار له مخى بلکه د نبات د انکشاف په ټاکلى برخه کى د فيصدى له نظره، توصيه کيږي (5.5 جدول). هغه سره چه د قاعدوى موضعى تطبيق څخه وروسته تطبيقيږى (د تورو بانجانو په صورت کى) په جانبى ډول علاوه کيږي.

د ميوى د ټولولو په جريان کى چه کومه سره تطبيقيږي، په څلورو ځلو کى تطبيقيږي چه دوه هفتى وقفه د هر دوه ځلو تر منځ موجود وي.

5.4 جدول: د ودى د موسم په جريان کى د کيمياوى سرو توزيع په فيصدى

| غذايى عنصر | قاعدوى | درى اونى | شپږ اونى | د حاصل ټولولو په وخت کى | مجموعه |
|---|---|---|---|---|---|
| N | 30 | 15 | 15 | 40 | 100 |
| P | 50 | 0 | 50 | 0 | 100 |
| K | 30 | 15 | 15 | 40 | 100 |

ځوان بوټى نظر زړو بوټو ته نازکه او د حشراتو د حملى په مقابل کى مقاومت کم لري . کرونکي ضرورت لري چه د حشراتو پواسطه رامنځ ته شوى تخريب د سرى د تطبيق څخه وروسته و څاري او د حشراتو د ژوند د دوران په رڼا کي د سرى د تطبيق وختونو ته تغير ورکړئ.

د مخصوصو فصلونو لپاره د سرى د تطبيق توصيه شوى اندازى او طريقى د هر فصل په مربوطه فصل کى ليدلاى شى.

## 5. د نباتاتو حفاظت او ساتنه

Pest هغو ژونديو موجوداتو ته ويل کيږي چه د نباتاتو لپاره مضر وي. هغوی کولای شي چه ساقی، پاڼی، ريشی، ګلان او ميوی تخريب کړي. ځينی يی د نباتاتو سره د غذايی موادو او اوبو په جذب کی رقابت کوي. کله نا کله دا ژوندی موجودات سبزيجاتو ته دومره تاوان رسوي چه حاصلات يی ډير ښکته او يا يی کيفيت ډير ټيټوی چه په بازار کی نشی خرڅيدلای. چه په نتيجه کی د کرونکي لپاره زيان رامنځ ته کوي.

د نباتاتو لپاره په مضره ژونديو موجوداتو کی هرزه بوټی، حشرات، نيماتودونه او سپږی دي. هغه يی چه د ناروغی سبب ګرځي بکتريا، فنګس او فايټوپلاسما دي. پراختيايی کارکوونکی بايد وپوهيږي چه د سبزيجاتو د توليد لپاره په شرقی زون کی کوم ژوندی موجودات مضر دي او د بزګرانو لپاره د حل کومی لاری موجودی دی او که چيری د کيمياوی دوا ګانو څخه کار اخيستل کيږی نو کوم حفاظتی تدابير بايد ونيول شي.

### 1.5 هرزه بوټي

هرزه بوټی هغه نباتات دی چه په هغو ځايو کی شنه کيږي چه هلته پکار نه وي. کله نا کله دا بوټی د کوچنيو نباتاتو لپاره د سيوری د تهيه کولو او د رطوبت د ساتلو په اساس د اوړی په مياشتو کی ګټور وي. لاکن په عمومی توګه هرزه بوټی د نباتاتو سره د اوبو او غذايی موادو په قسمت کی رقابت کوي. دوی کيدای شی چه زيږرو مضره موجوداو او د ناروغيو عاملو مکروبونو ته ځای او ساتنه ورکړي. د هرزه بوټو تخمونه کيدای شی چه په ځمکه کی د اوږدی مودی لپاره پاتی شي او کله چه شرايط ورته مساعد شی شنه کيږي. ددی بوټو کنترولول د توليد مصارف لوړوي خصوصاً هغه وخت چه مزدورانو ته پکی ضرورت وي او يا قيمتی کيمياوی دواګانی استعمال شي.

| په شرقی زون کی عام مضره بوټي |
| --- |
| منی او ژمی |
| *Chenopodium sp* |
| *Poa grass* |
| *Rumex acutus* |
| *Convolvulus arvensis* |
| *Fox tail* |
| *Wild Mustard* |
| *Medicago* |
| *Bird foot* |
| *Bindweed* |
| پسرلی او اوړی |
| *Cyperus roundus* |
| *Solanum nigram* |
| *Datura indica* |
| *Euphorbia sp.* |

ددی هرزه ګياه د کنترول لپاره په کوچنی پيمانه د سبزيجاتو تجارتی توليد کی تر ټول اقتصادی او موثری لاری دادي چه ښه کرهنيزه عمليات په کار واچول شی:

- پاک تخم استعمال کړ ئ، کله چه تخم ټولو ئ او يا يی پاکو ئ نو ښه يی پاک کړ ئ تر څو د اضافی نباتاتو تخمونه تری لری شي، تصديق شوي تخمونه واخلی چه تاسی ته دا ډاډ درکړی چه نور اضافی تخم پکی ګډ نه دي.
- مځکی لدينه چه ځمکی ته يی علاوه کړ ئ نو ځمکی ته ښه سره ورکړ ئ، تازه سره د اضافی تخمونو يوه منبع ده او که د تجزيی په وخت کی له منځه ولاړ نه شی نو شنه کيږي او د سبزيجاتو سره په اوبو او غذايی موادو کی رقابت کوي.
- ځمکه قلبه کړ ئ تر څو د اضافی نباتاتو بقاياوی لاندی شی او د راتلونکی کښت څخه د مخه تجزيه او له منځه ولاړ شي
- د فصل د راشنه کيدو څخه وروسته، په وختی ډول يی خيشاوه وکړ ئ او بيا يې په تکراری ډول ترسره کوئ

فی الحال په شرقی زون کی خیشاوه د لاس په ذریعه ترسره کیږي، خصوصاً د کرونکي د کورنۍ د غړو پواسطه . که چیری مزدور ته اړتیا شي نو د خیشاوی قیمت ډیر لوړیږي . کله چه بزګران د بازار لپاره په پراخو ساحو کی کښت کوي، دا شاید ډیر ارزانه وی چه د لاس پر ځای د کیمیاوی موادو څخه استفاده وشي.

د کیمیاوی دواګانو څخه چه اضافی نباتات وژنی د هرزه بوټو په کنترول کی کار اخیستلای شو. ځینی یی د فصل د شنه کیدو څخه د مخه تطبیقیږي او ځینی یی هم هغه وخت تطبیقیږي چه هم فصل او هرزه بوټی شنه شوی وي . ځینی کیمیاوی دواګانی انتخابی وی چه خاص هرزه بوټی وژني او ځینی یی هم ټول نباتات، هم اصلی نباتات او هم هرزه بوټی، وژني.دا مهمه ده چه د ځمکی لپاره صحیح کیمیاوی مواد انتخاب شي او د فابریکی د هدایاتو سره سم استعمال شي. که چیری که غلط کیمیاوی مواد انتخاب شي نو کیدای شی چه اساسی فصل ته هم تاوان ورسوي او یایی د منځه یوسي.

## 2.5 حشرات

د حشراتو ډیر ډولونه دی چه په سبزیجاتو باندی حمله کوي . ځینی یی تدریجی او پرمختلونکی تخریب واقع کوي او ځینی یی یو فصل په یو څو ورځو کی دننه دننه دمنځه وړی . ځینی حشرات ناروغۍ هم انتقالوي، خصوصاً ویروسونه. له نیکه مرغه ځینی حشرات ګټور وي لکه د شاتو مچۍ چه د ګلانو ګرده انتقالوي او د ښی میوی د نیولو څخه اطمینان تر لاسه کوي او Beetles یا ګونګټی چه د مضره حشراتو هګۍ خوري.




حشرات د خپل ژوند په دوران کی د مختلفو مراحلو څخه تیریږي . ځینی یی په قسمی توګه ت غیر شکل کوي او ځینی یی په مکمله توګه تغیر شکل کوي . ځینی حشرات لکه thrips د کوچنیو بالغو حشراتو په شان دنیا ته راځی . Leaf hopper, aphids, damselflies د هګیو څخه د nymph په شکل پیدا کیږي او بیا په تدریجی ډول د بالغ خصوصیاتو پیدا کوي (7.1 شکل). ځینی حشرات لکه پتنګان، مچان، او بیټلز د څلورو مرحلو څخه تیریږي: هګی، لاروا، پیوپا او بالغ شکل (7.2 شکل). لاروا یی (white grubs, loopers, leaf miners, cutworms, stem borers) نظر بالغو ته ډیر ضرر رسوي . حشرات د خپل ژوند په ځینو مرحلو کی ډیر حساس وی یعنی ژر له منځه تلی شی نظر نورو مرحلو ته . نو دا آسانه او ډیر موثره لار ده چه په همغو مرحلو کی چه حشرات ډیر حساس وي، د کنترول تدابیر تطبیق کړو.

حشرات د زبیښلو یا ژولو پواسطه تغذیه کوي . هغه حشرات چه د پاڼو، سا قو ، میوو او ګلانو په ژوولو تغذیه کیږي مثالونه یی:stem borers

Leaf miners and loopers دي چه په غوښن نسجونو کی تونلونه وکاږي او د پاڼو یا د نبات به نورو برخو باندی تغذیه کیږي. زخمی شوی نباتات کمزوری وی او د بکتریاوو حملو ته حساس وي. ځینی حشرات او چینجی د ځمکی لاندی جوړښتونو باندی تغذیه کیږي لکه ریښی او د ساقو د ځمکی لاندی برخی. ځوانی تیغی ددی په مقابل کی خاصتاً د ژوونکو موجوداتو د حملی په مقابل کی حساسی وي. هم په قوریو کی او هم د بزغلیو د کښت څخه وروسته.




**شکل 2.5: د یو بیټل د ژوند دوران، څلور مرحلې**

هغه حشرات چه د زبیښلو په واسطه تغذیه کوي په خوله کی سوری کوونکی برخی لری. Aphids, thrips او leaf hopper د زبیښلو پواسطه تغذیه کیږي. هغه پانی چه قاتیږی یا تاویږي ددی ډول حملی ښکارندویه دي. کله چه زبیښونکی حشرات تغذیه کوي، کیدی شی چه نبات ته زهری مواد او یا مکروبونه پیچکاری کړي. غیر نورمالی ودی چه د gall په نامه هم یادیږي، هم د ه غه تخریب نښی دی چه د زبیښوونکو حشراتو پواسطه واقع کیږي. د زبیښونکو حشراتو نفوس لکه aphids هغه وخت ډیریږی چه نباتات فعاله وده ولري، فقط د سری د تطبیق څخه وروسته.

## 3.5 نور ژوندي موجودات

3.5 شکل:ما یټس



کله چه بزګران یا پراختیایی کارکوونکی د حشراتو د تخریب په هکله غږیږي، نو د سپړیو څخه هم یادونه کیږي. په حقیقت دوی حشرات نه دی خو کوچنی حیوانات دي چه د یوی بلی کورنی پوری اړه لري. د زبیښلو په واسطه تغذیه کوي او په چټکی سره ډیریږي. د سبزیجاتو فصلونو ته ډیر تاوان رسولای شي او ناروغی انتقالوي (7.3 شکل).

نیماتودونه چه کوچنی ګرد چینجیان وي هم د سبزیجاتو فصلونه تخریبولای شي. تر ټولو څخه عام نیماتود د ریښی د غوټی نیماتود دی چه په خاوره کی پیدا کیږي.دا د هغی خاوری پواسطه انتقالیږي چه په بوټانو او ماشین آلاتو باندی پاتی کیږي او هم د اوبو په واسطه انتقالیږي. دا چینجی د ریښی په سطحه باندی غیر منظمی غوټی پیدا کوي چه نبات ته د غذایی موادو په انتقال کی مزاحمت کوي. کنترول یی خاصتاً ډیر مشکل وي کله چه د استراحت یا ډارمنسی په مرحله کی وي.

## 4.5 ناروغی او بی نظمی

د سبزیجاتو د ناروغیو اکثره ډولونه د ژوندیو موجوداتو لکه بکتریا، فنجی او حتی ویروسونو پواسطه رامنځ ته کیږي. ځینی ناروغی چه د بی نظمیو په نامه هم یادیږي، د حشراتو د تخریب، د چاپیریال ککړوالی، مالګی، او یا د ځینو غذایی موادو د ډیر زیاتو یا ډیر کمو مقدارونو پواسطه رامنځ ته کیږي. په دی رهنما کتاب کی مونږ به د ناروغیو او بی نظمیو یا تشوشاتو تر منځ توپیر وکړو، خصوصاً د ځینو خاصو سبزیجاتو په مربوطه فصلونو کی. په دی فصل کی یواځی ناروغیو باندی بحث کیږي.



ټول فنګسونه د ناروغیو باعث کیږي. ډیر یی ګټور وي. فنګسونه په ځمکه کی د عضوی موادو په پارچه کولو کی یو غټ رول لري (لکه حیوانی او ترکیبی سره).



**Figure 7.6: Potato Y Virus Symptoms on Leaf**
*Source: Fact Sheet 02/2003, Western Australia Department of Agriculture*

په شرقی زون کی د سبزیجاتو ډیری ناروغی دی چه د فنګسونو پواسطه رامنځ ته کیږي: Damping Off چه د بزغلیو د تولید یو مشکل کیدای شي، Powdery mildew چه د Cucurbit د خاندان ډیر نباتات لکه د یخ موسم( Cool) فصلونه او کاهو (7.4 شکل) متاثره کوي، او د Fusarium Wilt چه په رومیانو، هندوانو او لوبیا باندی حمله کوي (7.5 شکل).

بکتریا هغه عام میکروبی موجودات دی چه په خنثی او خفیفاً القلی



**Figure 7.5: Fusarium wilt of tomato**
*Source:* ohioline.osu.edu/hyg-fact/3000/3122.html

خاورو کی ښه وده کوي . هغوی نباتاتو ته د ټپونو د لاری ننوزي لکه د هغو تخریباتو له لاری چه د ژوونکو حشراتو پواسطه رامنځ ته شوي وي او یا د ساقو او پاڼو په خارجی سطحه باندی د طبیعی سوریو پواسطه نبات ته ننوزي. تر ټول عامی بکتریایی ناروغۍ چه په شرقی زون کی سبزیجات تر حملی لاندی راولي دادی : د Cucurbit د کورني په سبزو لکه په بادرنګ Bacterial Wilt، په لوبیا Common Blight ناروغی.

ویروسونه هم لکه د ژوندیو موجوداتو په شان دي خو د حیواناتو یا نباتاتو په جمله کی نه راځي . هغوی د اخته شوي نبات څخه یو صحتمند نبات ته د Aphids, leaf hopper سپږیو پواسطه نقلیږي . ځینی ویرسونه په میخانیکی توګه انتقالیږي لکه د انسانانو یا حیواناتو د تماس پواسط ه د یو اخته شوی نبات سره . ځینی ویرسونه چه په شرقی زون کی په سبزیجاتو باندی پیدا کیږي هغه دادی : د هندوانو Mosaic Virus، د کچالو Virus Y (7.6 شکل).

بل د ناروغی پیدا کوونکی ژوندی موجودات پرازیتونه دی چه جسامت یی متوسط یعنی د ویرسونو د جسامت او بکتریاوو د جسامت ترمنځ قرار لري. د Phytoplasma په نامه یادیږي. ځنی ناروغۍ چه ددی پواسطه پیدا کیږي دادي: Yellowing, Stunting, Wilting and Distortion. په ګازرو، کاهو او رومیانو کی د Aster Yellows ناروغی پیژندل شوی.

## 5.5 د مضره ژوندیو موجوداتو د کنترول لپاره کړنلاری یا ستراتیژی

د سبزیجاتو کرونکی کولای شی چه د مضره ژوندیو موجوداتو پواسطه د راپیدا حملو څخه د ښو کرهنیزه عملونو او عادتونو په عملی کولو سره، کمی کړي او یا یی هم په ځینو حالاتو کی مخنیوی وکړي.

- د ښو ډولونو انتخاب
- د تصدیق شوو تخمونو استعمال
- د فصلونو تر منځ دزراعتي تناوب قایمول
- د کښت لپاره ښه ځایونه انتخابول
- د ځمکی ښه تیارول او په مناسب وخت کی کرل
- نباتاتو ته مناسبه غذا ورکول
- د اوبو ښه مدیریت څخه استفاده کول
- د ځمکو څخه نباتی بقایاوی ایسته کول او د پولو پاک ساتل (ښه نظافت)
- ځمکو ته د ګټورو حشراتو جلبول

ددی جریانونو څخه یی اکثراً په تفصیل سره په مخکینیو فصلونو کی پری بحث شوی دی. ځنی خاص ټکي یی چه د نباتاتو د ساتنی په اړوند بیا دلته کتل کیږي.

> د مضره حشراتو اداره کول په توحیدی توګه (**IPM**)
>
> تعریف: د مختلفو تخنیکونو د یوځآی کولو پواسطه د مضره ژوندیو موجوداتو د اداره کولو لپاره یوه ستراتیژی ده چه د هغوی څخه د رامنځ ته کیدونکی ضررونو مخه نیسي بدون لدینه چه چاپیریال ته تاوان ورسیږي.
> تخنیکونه:
> څارنه: پدی پوهیدل چه کوم مضر حشرات موجود دي او د هغوی د نفوس په تغیراتو باندی پوه یدل
>
> کلتوری یا رواجی عملونه: د ځمکی تیارول په صحیح توګه، د نباتاتو د کرلو صحیح وخت، د مقاومو ډولونو استعمال، او داسی نور
> بیولوژیکی کنترول: د مضره موجوداتو طبیعی دښمنان تشویقول چه ځمکو ته راشي لکه د فرامون د مواد د استعما ل پواسطه، او داسی نور
> کیمیاوی مواد: د تصدیق شوو کمیاوی دواګانو استعمال په خوندی طریقه

هر کال د نوو سبزیجاتو ډولونه بازار ته راووځی. ددی څخه ډیر یی د هایبرید یا دوه رګه په ډول دی چه د مضره ناروغیو او حشراتو په مقابل کی یی مقاومت لوړ شوی وي. ځنی نور یی د اقلیمی حالاتو په مقابل کی ښه توافق کولای شي. که چیری یوخاص ډول یی ستاسی د منطقی د شرایطو سره توافق ونشی کړی، نو ښه وده نه کوی او د حشراتو او مضره موجوداتو د حملی لاندی راځي. د بزګرانو سره مرسته وکړئ چه هغه ډولونه انتخاب کړي چه د محلي ناروغیو او مضره حشراتو په مقابل کی مقاومت ولري. هغوی باید تصدیق شوي تخمونه او مواد واخلي چه د ناروغتیو څخه پاک وي. اکثره تخمونه چه د اړونده خرڅوونکو سره وي، د مخکی نه د فنګس وژونکو پواسطه

باید تداوي شی. بزغلی  او ځوان بوټي باید صحتمند او قوي وي ترڅو هغوی وکولای شي چه د مضره ژوندیو موجوداتو په مقابل کی مقاومت وکړي.

د فصلونو تر منځ تناوب مراعت کول په ځمکه کی د مضره حشراتو او ناروغیو پیدا کوونکو موجوداتو د تجمع څخه مخنیوی کوي. بزګران باید په عینی ځمکه کی د عین کورنی  نباتات  د Solanaceae خاندان (توربانجان، رومیان، کچالو)  د دوه پر له پسی فصلونو لپاره ونکري. مضره حشرات او ناروغی مهمولاً هغه نباتات چه نژدی ارتباط ولري، تر حملی لاندی راولي. د فصلونو بدلول د مضره ژوندیو موجوداتو د ژوند دوران قطع کوي او نفوس یی ښکته ساتي. د فصلونو د فصلونو د دوران بله ګټه داده چه د ځمکی د غذایی موادو څخه په سمه او موثره توګه استفاده صورت نیسي. فصلونه غذایی موادو ته مختلفی اړتیاوی لري او ریشی یی په مختلفو   عمقونو سره قرار لري او که چیري په فصلونو کی بدلون راشي نو دا کار نه پریږدي چه د عین ژوروالی څخه په هر موسم کی غذایی مواد واخیستل شي.

ځینی ناروغی او حشرات په ځمکه کی د یو اوږد وخت لپاره پاتی کیږي. کرونکي باید د ځمکه په هغه برخه کی فصل ونکري په کوم کی چه دوی په مخکینی فصل کی د حشرو ستونزی لیدلی وی. که ستونزی باقی پاتی کیږي، نو ځمکه باید هیڅ ددوه کلو لپاره ونکرل شي او یا باید د فصلونو د پلان شوی دوران یوه برخه اوسي.

لکه څنګه چه په مخکینیو فصلونو کی ولیدل شو، که څه هم نباتی غذایی مواد شاید په ځمکه کی موجود وي خو شاید د نباتاتو استفادی ته مهیا نه وي. کیدای شی چه دلیل یی د خاوری pH خو دلیل یی دا هم کیدای شی چه په ځمکه کی په کافی اندازه اوبه نه وي ترڅو غذایی مواد د ریشو ترڅنګه د جذب لپاره وررسوي. که خاوره ډیری زیاتی اوبه ولري، ریشی پدی نه توانیږي چه غذایی مواد جذب کړي. دا دواړه حالتونه په نباتاتو باندی د فشار سبب ګرځی او کمزوری کوي یی. په اوچتو بسترونو باندی د سبزیجاتو کرل د اوبو ښه تخلیه تامینوی او د خاصو فنګسونو پواسطه د حملو د کمیدو سبب ګرځی لکه هغه فنګسونه چه د Damping Off سبب ګرځي (شکل 7.7).



**Figure 7.7: د کاهو تولید په اوچتو بسترونو باندی**
*Source: ALP/E, Afghanistan*



**Figure 7.8: رومیان د لرګیو په تکیه**
*Source: Roots of Peace, Afghanistan*

د اوبو ورکولو په وخت کی په فشار سره د اوبوپاش کول باعث ددی کیږي چه سپورونه او د ناروغیو د عاملو موجوداتو نوری برخی پاڼو ته انتقال کړي. د ځینو نباتاتو لپاره لکه رومیان دا کومک کوي چه د لرګیو پواسطه یی د ځمکی څخه اوچت کړو ترڅو د د ځمکی سره په مستقیم تماس کی رانشي (7.8 شکل).
په وختی ډول کښت کول فصل ته اجازه ورکوي چه مخکی تر دی چه مضره حشرات او ناروغیی پیدا شی، د پخیدو مرحلی          ته ورسیږي.څنګه چه په شرقی زون کی مضره حشرات کم دي د سوړ ژمی په خاطر، کله چه موسم بدلون مومی نو حشرات ډیر فعالیږي   او مرض تولیدوونکی ژوندی موجودات په وده او تناسل باندی پیل کوي  . پدی وخت کی په نباتاتو باندی ډیر فشار موجود وي.

ځینی حشرات برګرانو ته ګټور وي ځکه چه د سبزیجاتو د ګلانو څخه ګرده انتقالوي. ځینی سبزیجات لکه بادرنګ او هندوانې تر هغې میوه نه نیسی که چیری د شاتو د مچیو پواسطه ګرده ور ونرسیږي . ځینی نور ګټور حشرات په مضره حشراتو ښکار کوي، د مثال په توګه بیټلز aphids او د حشراتو هګی خوري. ځینی عام ګټور حشرات چه د بزګرانو سره ملګرتیا کوي دادي : lacewings, mantids, green garden spiders, dragonflies, parasitic *Trichogramma* wasps, and green lacewings (شکل 7.9). بزګران باید د ګټورو او مضره حشراتو تر منځ په فرق وپوهیږي. کله چه مونږ دا ټاکو چه کوم ډول کنټرول ته ضرورت لرو، بزګران باید پام وکړي چه د کیمیاوی موادو څخه استفاده هم مضره او هم ګټور حشرات او موجودات وژني.




**Figure 7.9: Green lacewing: predaceous larva**
*Source: Statewide IPM Program,© 2000 Regents, University of California,*

د حشراتو څخه پرته نور طبیعی وژونکي هم شته لکه فنګسونه، بکتریا او ویرسونه. په تجارتی ډول هم دا فنګسونه، ویرسونه او بکتریا خرڅیږي چه د نباتاتو په پانو علاوه کیږي تر څو خاص حشرات او مضره موجودات ښکار کړي. ددیو څخه یی ډیر عام ډول *Bacillus thuringiensis* دی چه د کترپیلر د حشراتو ځانګړی ډولونه تر حملی لاندی راولي.

اکثره مضره موجودات خصوصاً حشرات کنترولیدی شی که وختی کشف شي . ددی د کولو لپاره، کرونکي باید په منظمه توګه وګوري چه په ځمکو کی یی څه روان دي . دا د نظارت یا څارلو پنامه یادیږی. د موسم په جریان کی باید یو یا دوه ځلی په هفته کی تر سره شي، سهار وختي او یا د شپی د یو څراغ پواسطه . په پټیو کی د قدم وهلو په هکله مشوری په 1.5 جدول کی ورکړل شوی دي.

1.5 **جدول: د ساحوی څارنی ترتیب**

| | |
|---|---|
| کله چه د آفاتو یا نورو ستونزو لپاره څارنه تر سره کوئ چه باید په یو برابر ډول په پټی کی تر سره شي او یا د حشراتو یا ستونزو د خپریدلو ترتیب نامعلوم وي، نو په ټول پټی کی نمونی په مساویانه توګه واخلی. |  |
| کله چه تاسی توقع کوئ چه ستنونزی یا آفا ت لمړی د پټی په اړخونو او یا بهر خوا ته څیرو باندی څرګندیږي، نو د نمونو موقعیت د پټی د اړخونو په امتداد په مساویانه توګه وویشی. |  |
| کله چه تاسی توقع کوئ چه ستنونزی یاآفا ت  لمړی د پټی په خاصو ځایونو کی شته، نو په هماغه ځایونو د نمونو موقعیتونه وټاکی چه احتما ل یی ډیر وي. |  |

کله چه څارنه ترسره کوئ، نو کمزوری او کوچنی نباتاتو په لټه کی شی، تخریب شوی پانی، ساقی، ګلان او میوی وګورئ . لکه څنګه چه حشرات د نبات په مختلفو بر خو باندی تغذیه کوي او هګی اچوي نو بزګران باید د نبات څوکی ته وګوري، د پاڼو لاندینی برخي، د نبات قاعده، او یا د نبات په قاعده کی خاوره یا نباتی ټوټی وګوري . د هرزه بوټو لپاره څارل بزګران د هرزه بوټو د فشار د انتقال څخه باخبر ساتي او دا آسانه کوي چه د هرزه بو ټو ستونزی په ځانګړو موقعیتونو کی له منځه یوسي . د هرزه بوټو لپاره د کښت څخه ۷ نه تر ۲۰ ورځو وروسته څارنه تر سره کړئ او بیا کله نا کله تر څلور یا شپږ اونیو لپاره څارنه کوئ.

کله چه مضره موجودات وپیژندل شو، نو د کنترول مناسب تدابیر او انتخاب یوځای کیدی شي . په ځینو حالاتو کی حشرات د لاس په ذریعه لری کول عملی لاره وي لکه د bean beetle, cabbage worm, and cucumber beetle خصوصاً هغه وخت چه نفوس یی لا کم وي . ددی حشراتو اکثره دولونه یی د پاڼو په لاندینیو برخو باندی موجودی وي. کرونکی په آسانۍ سره کولای شی چه د هګیو غونچی او نوی تولید شوی بچي د لاس په ذریعه تباه کړي یعنی د غټی ګوتی او د شهادت د ګوتی تر منځ و سولوي . دا طریقه د کوچنیو aphids په مقابل کی ډیره موثره ده. ځینی بیټلونه یا ګونګوټی فوراً راغورځیږی کله چه لاس وروړل شي او نبات په لاس سره په تیزۍ سره ټکان ورکول باعث ددی کیږي چه دا موجودات راوغورځیږي او یو پراخه لوښی کی راټول شي. که څه هم د لاس پواسطه ټولول د ټولو حشراتو لپاره عملی نه وي، خو که په ثابته توګه تر سره شي نو موثریت یی په حیرانوونکی توګه لوړ دي.

ناروغ نباتات چه د څارنی په جریان کی پیژندل شوی وي باید راوښکل شي او تباه شي. د ترکیبی یا نباتی سرو په جوړلو کی ځینی موجودات مړه کیږي، لیکن بهتره داده چه ناروغ بوټی وسوځل شي خصوصاً هغه چه ویروسونه لري تر څو اطمینان تر لاسه شي چه ناروغی همسایه بوټو ته سرایت نشی کولای. د تخم د کرلو څخه د مخه هرزه بوټی د لاس پواسطه راوښکل کیدی شی او کمپوست کیدی شی.

## 6.5 د مضره موجوداتو وژونکی (پستیساید)

پستساید هغه کیمیاوی مواد دی چه حشرات، د ناروغۍ پیدا کوونکی عا ملین چه د فصلونو حاصلات کموي کنترولوي. هغه کیمیاوی مواد چه د حشراتو په ضد استعمالیږی د insecticide یا حشره کش په نامه یادیږي. د هرزه بوټو د کنترول لپاره ګیاه وژونکی یا herbicide، د نیماتود د کترول لپاره نیماتیساید او د فنګس د کنترول لپاتره فنجیساید په نومونو یادیږي . دا باید یواځی هغه وخت استعمال شي چه د مضره موجوداتو د حملی له امله اقتصادی تاوانونه وجود ولري . په شرقی زون کی، کله چه موسم ګرم او وچ وي په سبزیجاتو باندی د مضره موجوداتو ډیر فشار نه وي او د اصلاح شوو کرهنیزه کړنو پواسطه اداره کیدی شی . لیکن کله چه کیمیاوی موادو ته اړتیا پیدا شي، پراختیایی کارکوونکی باید په کافی اندازه معلومات ولري چه بزګرانو ته ښی مشوری ورکړي.

### حشره وژونکي کیمیاوی مواد

هغه مواد چه د حشرو د کنترول لپاره استعمالیږی د حشره وژونکو په نامه یادیږي. دد کیمیاوی موادو د طبقه بندی کولو یوه لاره داده چه د کیمیاوی ترکیب په اساس تر سره شي یعنی د موثره یا فعالی کیمیاوی مادی په اساس چه په کی موجوده ده. په 2.5 جدول کی د حشره وژونکو کیمیاوی موادو عام ډولونه ورکړل شوي دی او ورسره د هغوی د استعمال په هکله معلومات او ځینی نور مشاهدات هم ورکړل شوی دي. غیرعضوی حشره وژونکی مواد د زهریت او د هغه مودی په وجه چه په چاپیریال کی پاتی کیږي، نور نه استعمالیږي . اکثره یی عضوی وی یا د نباتاتو څخه جوړ شوی وي او یا هم په مصنوعی شکل . د نباتی تولیداتو څخه چه جوړ شوی وی د هغوی مثالونه pyrethrum دی چه د chrysanthemum څخه جوړ شوی او نیکوتین دی چه د تمباکو څخه جوړ شوی دي، او neem دی چ د *Azadirachta indica* څخه جوړ شوی دي. هغه حشره وژونکی کیمیاوی مواد چه ډیر پراخه استعمال لری، مصنوعی ترکیبی دی چه ډیر حشرات وژني.

| تولیدات یا ډولونه یی | مشاهدات | فعاله ماده |
|---|---|---|
| DDT, Lindane, Chlordane, Methoxychlor, Heptachlor, and Aldin | پراخه استعمال لري خو د تطبیق څخه وروسته د ډیر وخت لپاره پاتي کیږي، په انساجو کی جمع کیږي، ډیر یی منع شوی دی | Organochlorines |
| Parathion, Malathion, Diazinon, Dameton, Chlorpyrifos | په چاپیریال کی نه جمع کیږي او په ۳۰ ورځو کی تجزیه کیږي، پاراتیون Parathion د انسانانو لپاره ډیر زهری دې، ملاتین تری نه کم زهري دی | Organophosphates |
| Carbaryl (trade name Sevin), Carbofuran, Aldicarb, and Propoxur | د ارګانو فاسفیت او ارګانوکلورین څخه بی خطره دی، په اووه ورځو کی تجزیه کیږي، د زبیښونکو او ژوونکو حشراتو په مقابل کی موثر دې. | Carbamates |
| Cypermetrine | د pyrithrin سره چه د chrysanthemum څخه تر لاسه کیږي معادل دي، د ډیر حشراتو په مقابل کی موثریت لري، انسانانو ته کم زهري دې | Pyrethroids |

**2.5 جدول: د مصنوعی عضوی حشره وژونکو موادو ډولونه**

| موثره ماده | مشاهدات | تولیدات |
|---|---|---|
| Organochlorines | پراخه استعمال لري او د تطبیق څخه وروسته د ډیری مودی لپاره فعال پاتی کیږي، د نباتاتو او حیواناتو په انساجو تاثیر کوي، اکثره یی بند دي. | DDT, Lindane, Chlordane, Methoxychlor, Heptachlor, and Aldin |
| Organophosphates | په چاپیریال کی نه ډیریږي، په ۳۰ ورځو کی تجزیه کیږي، پاراتیون د انسانانو لپاره ډیر زهري وي، ملاتیون نظر پاراتیون ته کم زهری وي | Parathion, Malathion, Diazinon, Dameton, Chlorpyrifos |
| Carbamates | د organophosphate په نسبت بی خطره وي، په ۷ ورځو کی تجزیه کیږي، د ژوونکو او زبیښونکو حشراتو په مقابل کی موثره وي. | Carbaryl (trade name Sevin), Carbofuran, Aldicarb, and Propoxur |
| Pyrethroids | مصنوعی ماده ده چه د pyrethrin سره چه د chrysanthemum څخه جوړیږی معادله ده، د حشراتو د ډیرو ډلونو په مقابل کی موثره ده، انسانانو لږه زهري ده. | Cypermetrine |

حشره کش هم د خپلو اثراتو په اساس چه حشرات وژنی صنفبندی شوی دی . هغه کیمیاوی مادی چه د تماس پواسطه وژل کوی د تماسی یا کانتکت حشره وژونکو موادو په نامه یادیږي . هغه چه د نبات پواسطه جذبیږی او هغه حشرات چه تری تغذیه کوی وژل کیږي، د سیستماتیک حشره وژونکو په نامه یادیږي . اکثره حشره وژونکی مادی چه په شرقی زون کی استعمالیږي، لکه ملاتیون، د تماس په اثر زهریت لري . دا ډول مواد هغه حشرات چه ورسره په تماس کی راځی اکثره وژني . اکثره یی غیر انتخابی دي . هغه حشرات چه د پاڼو په لاندی برخو کی پټیږي مشکل وی چه راساً ددی مادی پواسطه ووژل شي . بزګران باید ډیر پام وکړي چه ټول متاثره ځایونو ته د ملاتیونه ماده ورسوي.

د حشره وژونکو فعاله ماده د غیرفعالی مادو سره یوځای کیږي . ځینی یی د استعمال لپاره آماده وی او ځینی نور یی دی ته ضرورت لری چه د استعمال څخه د مخه د اوبو سره یوځای شي . د وچو ترکیباتو عام ډول یی د ګرد شکل، حلیدونکی پودر، دانی، ګولیو او یا طعمو په شکل وي. همدارنګه په مایع شکل راځی لکه ایروسول، غلیظ او رقیق محلولونه چه فشاری په قطیو کی وی.

فرامون طبیعی کیمیاوی مواد دی چه حشرات یی استعمالوی تر څو د خپل مخالف جنس حشری ځان ته جلب کړي. همدارنګه د حشراتو د کنترول لپاره هم استعمالیږي . دا مادی د حشراتو د تناسل دوران مختل کوی او نران نشی کولای چه مونثی حشری پیدا کړي. هګی چه تولیدیږی هم اکثراً خنثی وی یعنی تولد نه کوي. فرامونونه په دامونو کی ایښودل کیږي تر څو حشرات ورته راشي او بیا د حشره کش موادو پواسطه له منځه ولاړ شي. دا کار دوه ګټی لری یو دا چ ه د حشره وژونکی مادی استعمال کموی او بل دا چه هغه سطحه چه باید پری استعمال شی هم کمیږي. ددی سیستم نه استفاده کول د چاپیریال لپاره کم مضریت لري.

فنګس وژونکی(فنجیساید)
دا هغه کیمیاوی مواد دی چه فنګسونه کنترولوي هغه چه په سبزیجاتو کی د ناروغیو سبب ګرځی . ځیڼی یی داسی وی چه د نبات په هره برخه چه تطبیق شی هماغه برخه د فنګس څخه ساتي. نو په همدی خاطر دا ماده باید په ټول نبات باندی په مساویانه شکل استعمال شی ترڅو ډیر ښه حفاظت ورکړي. یو مثال یی Captan دی چه د سپری یا ګرد په شکل په سبزیجاتو باندی او د تخم د تداوی لپاره هم استعمالیږي. دوهم ډول یی چه عام استعمال لری هغه دی چه د نبات پواسطه جذبیږی او د نبات په نسجونو کی خپریږی او د انتان یا مکروب لکه فنګس سره مبارزه کوي. Benzimedazole یو سیستمیک فنګس وژونکی دی چه د Botrytis په مقابل کی موثر دی.

فنګس وژونک همدارنګه د ه غوی د کیمیاوی جوړښت په اساس طبقه بندی کیږي، چه عضوی دی یا غیر عضوي. 3.5 جدول د عضوی او غیرعضوی فنګس وژونکو مشخصات وړاندی کوي.

3.5 جدول: عضوی او غیر عضوی فنګس وژونکی چه په عام ډول استعمالیږي.

| ډول | مشاهدات | تولیدات |
|---|---|---|
| عضوی فنګس وژونکی | په تاثیر کی ډیر انتخابی وي، د نبات د نسج لپاره کم تخریبی وي، په آسانی سره تجزیه کیږي. | Dithiocarbamates such as thiram, maneb, zineb, and mancozeb; substituted aromatics; thiazoles; benomyl; triazines; and dicarboximides |
| غیر عضوی فنګس وژونکی (اساسی عناصر یی سلفر، مس، سیماب دی)، په اسانی سره نه تجزیه کیږي او د عضوی موادو څخه ډیر زهری دی. | سلفر: پودر یا حلیدو وړ پودر وي، په لوړه درجه د حرارت کی د تماس پواسطه وژل کوي<br>مس: د Downy Mildew په مقابل کی موثر دی او همدارنګه حشرات نه پریږدي، په اوبو کی منحل نه دی | سلفر چه د downy mildew په مقابل کی موثر دی<br><br>Bordeau mixture: Copper sulphate and hydrated lime |

## 7.5 آفـا ت کش یا پستسایدو څخه په خوندی طریقه کار اخیستل

آفات وژونکی کیمیاوی مواد که چیری په مناسبه او صحیح طریقه استعمال نه شي نو ضررناکه وي . په آسیا کی ډیر داسی مثالونه شته چه بزګرانو تری روغتیایی ستونزی پیدا کړي، چه یایی ډیر زیات استعمال کړی او یا یی په غلطه توګه استعمال کړي.

د سبزیجاتو کرونکی په شرقی زون کی د کیمیاوی حشره کشو موادو څخه هغه وخت باید استفاده وکړي چه د کنترول لپاره یی بله لاره نه وي . که حشره وژونکی کیمیاوی مواد ضروری وي، نو څو قدمونه دی چه یو کرونکی یی باید واخلی ترڅو خپل ځان او خپل د ځمکی کارکوونکي هم د ناروغه کیدو څخه وژغوري.

- هغه حشره وژونکی کیمیاوی ماده انتخاب کړ ئ چه ډیره کمه زهري وی او د خاصو حشراتو او مضره موجوداتو په مقابل موثریت ولري
- د فابریکی لارښوونی تعقیب کړئ تر څو په خوندی توګه استعمال شي
- ژغورونکی لباس واغوندئ او د استعمال څخه فوراً وروسته ځان ومینځی
- په ډیر پام سره کیمیاوی مواد تطبیق کړ ئ یعنی د مساعد شرایطو لاندی چه باد او باران نه وي، په سم وخت کی ( د مضره ژوندیو موجوداتو د ژوند په حساسو مرحلو کی، د حاصلا تو د ټولولو څخه لږ مخکی باید تطبیق نه شی ترڅو په حاصلاتو باندی یی اثرات پاتی نه شی او مصرفوونکو ته ضرر ونه رسوي).
- پدی پوهیدل چه د حادثی په وخت کی باید څه وشی
- د استعمال څخه فوراً وروسته باید ټول سامان الات پاک شي
- کیمیاوی مواد په یو مصؤن او خوندی ځای کی د فلبریکی د لارښوونو په اساس کښیږدئ.

## *6.* د حاصلا تو تولول او د تولولو څخه وروسته یی اداره کول



**Figure 8.2:** **د فشار پواسطه د رومیانو زخمی کیدل**
*Source: http://www.fao.org/docrep/008/y4893e/y4893e04.htm#TopOfPage*

په شرقی زون کی سبزیجات تازه راتولیږي یا د مستقیم مصرف لپاره او یا د پروسس کولو لپاره. د بزگرانو گټه په دی پوری اړه لري چه د ښه **کیفیت** والی نلزه تولیدات مشتریانو ته ورسوي، هم د افغانستان دننه او هم تری بهر، د **ضرورت په اساس**. اکثره سبزیجات ډیر موقتی وي او د حاصل د تولولو څخه وروسته تمایل لري چه ژر خراب شي. داسی اټکل کیږي چه د تولیداتو خرابیدل یا خسی کیدل د بزگر گټه د ۵۰-۲۵ فیصدو پوری راښکته وي.

د یو پراختیایی کار کوونکی په حیث ستاسی نقـش دادی چه کرونکی د حاصلاتو د عمده علتونو څخه خبر کړئ، او هغوی د حاصلاتو د تولولو او اداره کولو په خاصو تخنیکونو کی وروز ئ چه باعث ددی کیږي چه د حاصلاتو د تولولو څخه وروسته ضایعات را ښکته شي.

### 1.6 د حاصلاتو د تولولو څخه وروسته ضایعات کمول

تازه تولیدات د ۷۵ نه تر ۸۵ فیصده پوری اوبه لري چه د اوبو اندازه یی د سبزی د ډول او د نبات د استعمالیدونکی برخی پوری اړه لري . د حاصل د تولولو څخه وروسته فزیولوژیکی عملونه (تنفس او تبخیر کیدل) د یو وخته پوری ادامه مومي ځکه چه نباتی انساج لا ژوندی وي. د تنفس په جریان کی د نبات غذایی ذخیری کمیږي او بیا عوض کیږي نه چه باعث ددی کیږي چه عمریی ژر تیر شی، وزن بایلي، خوند بایلي خصوصاً خوړوالی او د مصرفوونکو لپاره غذایی ارزښت یی کم شي. هغه اوبه چه د تبخیر د لاری خارجیږی هم بیا نه پوره کیږي . که چیری تولیدات خپلی ۵ نه تر ۱۰ فیصدو پوری اوبه له لاسه ورکړي نو مړاوی کیږي او خرڅیږی نه. څومره چه د حرارت درجه لوړه وي په هماغه اندازه د اوبو ضایع کیدل ډیر وي . د رطوبت د لاسه ورکول او مړاوی کیدل نبات د ناروغیو په مقابل کی ډیر حساس او کمزوری کوي او د هغو ی د ساتنی موده کموي.

په غیر مناسبه او غیر صحیح توگه د سبزیجاتو اداره کول هغوی ته فزیکی صدمه متوجه کوي . زخمی کیدل، ماتیدل او د پوستکی چاودیدل باعث ددی کیږی چه په نسج کی یی بدلون راشی او باعث ددی شی چه خوند د لاسه ورکړی او په چټکی سره په عمر پوخ یا بی فایدی شي (8.1 شکل). هغه ژوندی موجودات چه ناروغی پیدا کوی کولای شي چه سبزیجاتو ته داخل او باعث ددی شی چه نسج خراب او یا داچه ژر وچ شي.

### 2.6 د حاصلاتو تیارول

تجارتی کرونکی باید د حاصل د تولولو لپاره ښه طرحه وکړي. کار او مزدوري، سامان الات او انتقال یی باید ښه د مخه ترتیب شي. کرهنیزه کارکوونکی باید وروزل شي تر څو سبزیجات د پوخوالی په صحیح مرحله کی راټول کړي. هغوی باید زده کړي چه سبزیجات څنگه راټول کړي، څنگه یی راوشکوي، غوڅ یی کړي او راویکاږی بدون لدینه چه زخمی شی. فزیکی ژوبلی هله کمیدی شی چه کارگران وروزل شي چه د مناسبو لوښو څخه استفاده وکړي، او د غلطی کرنی څخه ډډه وکړی لکه ) ارتول یی او یابی غورځول ) او چه په سمه توگه یی بسته بندی کړي. ځینی تولیدات هملته په پټیو کی راټولیږي او بسته کیږي او راساً بازار ته انتقالیږي . کارگران باید په ترتیب سره د سبزیجاتو اینودل زده کړي. د حاصلاتو د تولولو سامان او وسایل باید پاک شي، تیره شي مخکی لدینه چه د حاصلاتو تولول پیل کیږي او د استعمال څخه وروسته سمدلاسه پاک او کښینودل شي.

### 3.6 کله باید حاصل تول شي

د سبزیجاتو د ساتنی مدت او د اوږدی مودی استعمال یی د حاصل د تولولو په وخت کی د هغوی د پخیدلو د مرحلی پوری اړه لري . غله جات هله راټولیږي چه فزیولوژیکی پخیدو ته ورسیږي (یعنی کله چه یی وده ودریږي)، سبزیجات معمولاً لږ څه وختی را ټولیږي، چه د پخیدو دی مرحلی ته تجارتی پخیدل وایی . دا هغه

مرحله ده چه یو خاص سبزی د مصرفوونکو یا بازار لپاره د پخیدلو مطلوبه مرحلی ته رسیدلی وي. دا پدی د نبات د استعمالیدونکی برخی په اساس فرق کوي: یعنی د نبات پاڼی،ګلان، ساقی، میوی یا ریښی (8.2 شکل).

د سبزیجاتو کرونکی د خپلی تجربی په اساس د ځینو طریقو څخه کار اخلی ترڅو معلوم کړي چه نبات د پخیدلو په مرحله کی دی او که نه. که چیری د ښی ببی لپاره رنګ ضروری وی نو حاصلات تر هغه ځنډوي ترڅو چه مطلوب رنګ تر لاسه شي. په ځینو میوه جاتو کی د نرم والی درجه مهمه ده (بزګران د خپلی غټی ګوتی پواسطه په میوو باندی فشار واردوي او نرم والی یی معلوموي). په قشر لرونکی فصلونو کی د قشر ماتیدل د پخیدلو درجه ښیی.

د پخیدلو ضریبونه هغه اندازه ګیری ده چه بزګران یی استعمالولای شی ترڅو د بازار لپاره د حاصل د ټولولو تر ټول ښه وخت معلوم کړي. دا ضریبونه معیاری شوی دی ترڅو تولیدات چه بازار ته عرضه کیږي د صارفینو لپاره مناسب وي.

**د حاصل ټولول او بازار ته عرضه کول**

د ریښو او ټیوبرونو لکه د ګازرو، اوړی، پیازو او کچالو ذخیره کول هله اصلاح کیږي چه د مکمله پخیدلو په مرحله کی راټول شي.

ځینی ریښی لکه ګازری په اوږده موده راټولیدلای شی او په ځمکه کی پاتی کیدی شي.

هندوانی او خټکي باید په صحیح مرحله کی راټولي شي، که ډیر وختی وی نو په کافی اندازه خوږوالی نه لري او ډیر ناوخته وي بیا هم د شکر مقدار یی کمیږي او نرمیږي.

رومیان هله راټولیږی چه پاخه نه وي تر څو لری بازارونو ته انتقال شي.

اندازه ګیری د فصل په اساس فرق کوي . په اندازه ګیری کی لاندی خصوصیات په پام کی نیول کیږي:

- د ګل څخه تر حاصل پوری د ورځو شمیر
- ظاهری ښه او د میوی د سطحی خصوصیات
- د سر یا ګل جسامت، شکل او کلکوالی
- جوړښت او کلکوالی
- خارجی او داخلی رنګ
- د کیمیاوی ترکیب تغیرات (د جامدو موادو منحل له اجزاوی، د نشایستی ویش، دشکر او تیزابو نسبت)

د پراختیایی کارکوونکی په حیث تاسی باید ددی ضریبونو سره آشنا اوسی او بزګرانو سره مرسته وکړئ چه په استعمال یی پوه شي او د خپلی تجربی برسیره یی استعمال کړي ترڅو اعظمی ګټه تر لاسه کړي . د هر فصل لپاره د پخیدلو ضری ب په راتلونکو اړونده فصلونو کی توضیح کیږي.




**Figure 8.2: نباتی مختلفی برخه چه تری د سبزیجاتو په حیث استفاده کیږي**
*Source: Unknown*

د پخیدلو د درجی نه پرته، د حاصل د ټولولو وخت د هوا د حالاتو پوری هم اړه لري . تازه تولیدات باید

د ورځې په سړه برخه کې راټول شي (سهار وختې) کله چه فصل او د حرارت درجه ډيره يخه وي او کله چه نبات د رطوبت لوړ مقدار ولري. ټول شوی نباتات بايد په پټيو کې پرينښودل شي چه لمر ته وچ شي . د لمدو سبزيجاتو راټولول ددی خطر لري چه د ذخيری په وخت کی په ناروغيو اخته شي.

### 4.6 د حاصل د ټولول تخنيکونه

د لاس پواسطه د حاصلاتو راټولول د نبات هغې برخې پوری اړه لری چه راټوليږي . د پاڼی لرونکو فصلونو لپاره لکه کرم او کاهو، کيدی شی چه ساقه د لاس په ذريعه راوشکول شي او يا د يو تيره چاقو پواسطه د ريشو سره نژدی قطع شي. د ريشي او غوټي والا فصلونه لکه کچالو عموماً د ښاخې يا رمبی پواسطه راټوليږي . کيندل بايد د نبات څخه ١٥ سانتي لری پيل شي تر څو کرونکې وکولای شی چه په صحيح توګه نبات راوکاږی. د پياز او اوږی غوټي بايد راويستل شي او پاڼی يی د غوټی څخه دری سانتی لری قطع شي . مخکلی لدينه چه کش شي، بايد د ښاخې په ذريعه نرمه شي . پخې ميوی چه په طبيعی ډول د شاخ سره د قطع کولو لپاره يوه نقطه ولري لکه روميان، اول بايد اوچت شي او بيا تاو او کش شي . خامې ميوی نازکه وی او د چاقو پواسطه بايد غوڅ شي لکه ليرو.

که چيری په اوږو باندی او يا په ملا باندی بوجۍ يا خلتې وتړل شی نو دواړه لاسونه د ټولول لپاره وزګاريږي . لوښي بايد په پام سره خالی شی ترڅو د ميوو د ژوبليدو څخه مخ نيوی وشي. دا لوښی بايد د امکان تر حده ډير صفا شي. د هغو بکسونو د استفادی څخه چه تيری څوکی ولری بايد ډډه وشي او يا داچه د کاغذ او يا داسی کوم شی پواسطه وپوښل شي. د امکان په صورت کی توليدات کيدی شی چه د ځمکو څخه مستقيماً هغو لوښو ته انتقال شی په کوم چه ذخيره يا انتقاليږي.

### 5.6 په ځمکه يا پټيو کی د فصل د مدت اصلاح

هغه توليدات چه ډير زيات شړيدونکی وي بايد د پټيو څخه يو سيوری ته ژر تر ژره انتقال شي . د کارتنونو د پاسه لمده ټوټه هواره کړی شی تر څو د لمر د حرارت څخه ساتنه وشي. ځينی پاڼی لرونکی سبزيجات کيدی شی چه پری اوبه په ټاکلو وقفو کی وپاشل شي تر څو د پانو رطوبت وساتل شي. په ساحه کی بايد د مناسبو وسايلو څخه کار واخيستل شی او د سيوری لاندی وی تر څو يخ وساتل شی او د هوا جريان ته زمينه مساعده شي.

د غوټو لپاره د وچولو څخه استفاده کيږي چه مفيد ژوند يی اوږد شي. فصلونه لکه پياز او اوږه په ساحه کی وچيدلای شی، او په يوه طبقه کی په ځمکه هواريږي د څه نا څه شپږ

**د فصل د تخريب د کمولو او د مفيده ژوند اوږدولو لپاره تخنيکونه**

د اوبو ضياع ددی تخنيکونو پواسطه کمه کړئ: هله يی حاصلات راټول کړئ چه ښی اوبه ورکول شوي وي، په ډير رطوبت کی يی وساتی او د هوا جريان ورته کم کړئ، توليدات يخ وساتی

مه يی تخريبوئ: کشوی يی مه، غورځوی يی مه، په پام سره يی بسته بندی کړئ، د بسته بندی لپاره د ښو وسايلو څخه کار واخلی، په خرابو سرکونو باندی په پام سره موتروانی کوئ

ناروغی کمی کړي ددی پواسطه: خرابی او ناروغه ميوی ايسته کړي، د هوا کافی جريان پريږدي ترڅوتبخير کيدل کم شی او رطوبت د جمع کيدو څخه مخه ونيول شي، په ځمکو کی بکسونه پاک وساتي او مه پريږدئ چه توليدات مو ځمکی سره ولګيږي.

توليدات يخ وساتي. تخنيکونه يی: سهار وختي حاصل ټول کړئ، د لمر څخه يی وساتي، هر څومره ژر چه کيدی شی د پټيو څخه يی انتقال کړي، د سيوری لاندی يی ذخيره کړئ، که يخچال نه وی نو توليدات په تياره، يخ او مرطوب ځای کی وساتي، او که يخچال وی نو په **cool**يخه خانه کی بايد تر خرڅلاو پوری وساتل شي.

ورځو لپاره. دا ددی لپاره کيږي چه بهرنی قشرونه يی سخت شي او د غوټی د غاړی څخه رطوبت لږ ي شي، تر څو د ذخيری او بازار ژوند يی اوږد شي.

اکثره ريشه يی فصلونه ګرم او مرطوبی هوا ته داسی عکس العمل ښيی چه پوستکی يی سخت او ډبل کيږي . دا د اوبو د کموالی او انتان يا مکروب په مقابل کی ژغورنه ورکوي . ژوبلی روغيږي. دا د curing په نامه يادېږی او د ځينو توليداتو لکه د کچالو او ګازرو د ذخيری وړ ژوند کی د پام وړ اصلاح راولي.

### 6.6 مينځل

هغه سبزيجات چه د هغوی د ځمکی دپاسه برخی راټولېږی بايد مخکی د بسته بند ئ څخه او بازار د عرضی څخه ومينځل شي. داسی هم کيدای شی چه د ودی په دوران کی په ځمکو کی پاک وساتل شي . د ملچ يا د نباتی پوښونو استعمال يوه ډيره ښه طريقه ده چه د باران او يا اوبونې پ ه وخت کی د نبات هغو برخو ته د اوبو د پاشيدلو څخه مخنيوی کوی کومی چه راټولېږی د حاصل په حيث . که کيمياوی دواګانی استعمالېږی نو د تطبيق وخت يی بايد داسی وټاکل شي چه فعاله ماده يی تجزيه شی او د حاصل د ټولولو په وخت کی په سبزيجاتو باندی يی هيڅ اثرات پاتی نه شي. د تطبيق او د حاصل د ټولول تر منځ مناسبه وقفه د اړونده کيمياوی موادو باندی ليکل شوی وي . که توليدات ذخيره کيږی بايد په کلورين داره اوبو (ppm۲۰۰)، يا د هغه تجارتی فنجيسايدو پواسطه چه لاسرسی ورته اوس د ۳۰ ثانيو لپاره ومينځل شي، او بيا د اوبو پری تيری او وچ شی تر څو فنګس کنترول شي.

د ريشی او د غوټی نباتات چه د فوری خرڅلاو لپاره راټولېږي لکه کچالو او ګازری، عموماً په احتياط سره مينځل کيږي ترڅو پوری نښتی خاوره تری لری شي . د پيازو غوټی مينځل کيږي نه، ځکه چه خارجی قشرونه يی خرابيږي.

### 7.6 منظمول او درجه بندی

دا ددی لپاره ترسره کيږي چه تازه توليدات د کيفيت په اساس درجه بندی او طبقو باندی منظم شي. هر فصل ځانته د کيفيت معيارونه لري چه د ترتيبولو او درجه بندی کولو لپاره استعمالېږي . عکسونه، روزنه د کارګرانو سره مرسته کوی چه درجه بندی ترسره کړي . تخريب شوی، خام او يا ناروغه توليدات بايد ايسته شي . ماتی شوی، چاوديدلی او يا داغ شوی ميوی بايد لری شي خو هميشه ايسته نه اچول کيږي . په هغه کتګوری ميوو کی اينبودل کيږي چه کيفيت يی ښکته وي او کيدی شی چه په ارزانه بيه وپلورل شي.

لوړ کيفيته درجه يا طبقه بايد هغه سبزيجات وي چه:

- داغونه يا زخمونه ونلري
- يو برابر جسامت او پخوالی ولري
- ښه يو برابر رنګ او پاک پوستکی ولري

ټيټ کيفيته درجه يا طبقه کيدی شی مختلف جسامتونه، د پخيدلو مختلفی درجی، په پوستکو کی ممکن يوڅه درزونه وي او يا يی رنګ کمزوری وي.

درجه بندی کله نا کله په ځمکو کی د ونو تر سيوری لاندی تر سره کيږي. چه دا غير موثر او د پاکوالی له نظره درست کار نه دی . د درجه بندی لپاره خاص ځايونه چه کارګران د ميزونو سره ولاړ وي باعث ددی کيږي چه درجه بندی ژر تر سره شي. که ميزونه د پاليتين د پوښونو پواسطه وپوښول شي، نو پاکول يی آسانه وي او کيدی شئ چه پوښونه يی په ارزانه توګه پاک شي. روښنايي بايد ښه وي.

### 8.6 په پاکټونو کی اچول

په پاکټونو کی اچول مهم دي ځکه چه توليدات زړه راښکونکی کوي، انتقال او پلورل يی آسانه کوی او ميخانيکی ضربو څخه يی د انتقال په جريان کی ساتي. هغه مهمی ميخانيکی تخريبونه چه د سبزيجاتو بازار راښکته کوي په لاندی ډول دي:

- پری کيدنه

- د فشار په اثر ژوبلی – کله چه بکسونه یا کریتونه کلک نه وی او که سر په سر شي غورځی
- د ټکان ضربه چه کله بکسونه یا کریتونه په بی احتیاطۍ سره وغورځول شي
- هغه ژوبلی چه د میوو د سولیدل کیدو په وجه یو دبل سره پیدا کیږي.

د پاکټ کولو یا بسته بندۍ مواد کیدای شی چه د لرګی، سفنج، پلاستیک او یا د کارتن کاغذ څخه جوړ شوی وي. او باید سپک وزنه او دوباره د استعمال وړ وی . ښه داده چه داسی مواد پکی استعمال نه شی چه کلکوالی یی کم وي چه د غورځیدو په وخت کی یی سبزیجات زخمیي او متضرر شي . 8.1 جدول د بسته بندۍ د مواد ګټی او تاوانونه ښیی.

**1.6 جدول: د بسته بندۍ لپاره د عامو استعمالیدونکو موادو پرتله یا مقایسه**

| مواد | ګټی | تاوانونه | اساسی استعمال |
|---|---|---|---|
| هغه طبیعی مواد چه په محلی توګه پیدا کیږي (کارتنونه، د بانسونو بکسونه او داسی نور) | • **ښکته بیه**<br>• په اسانی سره لاس ته راتلای شي<br>• په محلی توګه خلکو ته د کار پیدا کول | • **کمزوری او دیزاین کی خراب وي**<br>• څنډی یی تیری وی چه تولیدات زخمی کولای شي<br>• د انتقال په وخت کی ډیر ځای نیسي چه مصارف لوړوي | • **په کرونده کی استعمالیږي** |
| د لرګی باکسونه او پتړوسونه | • **قوی، کلک او یخچال کی ایښودل کیدی شي**<br>• بیا بیا استعمالیدی شي<br>• په محلی توګه استعمالیدی شي | • **د ضرورت په وخت کی به د لاس ته راتلو وړ نه وي**<br>• قیمته به وي<br>• په مناسبه توګه به دیزاین شوی نه وی او یا به جوړه شوی نه وي. د کوته کولو او د هوا د جریان ستونزي<br>• پاکول یی سخت وي | • **د کروندی څخه عمده فروش ته** |
| د فایبر تختی او د کلک کاغذ تختی | • **ډیر سپک**<br>• په اسانی سره تجارتی نښه او داسی نور پری لیکل کیدی شی | • **قیمته وی**<br>• بیا نشی استعمالیدی<br>• که څه هم په محلی توګه جوړیږي خو بیا هم خام مواد یی باید وارد شي. | • **عمده خرڅوونکی او تجاران یی په ښاری بازارونو کی خرڅوي**<br>• د پرچون لپاره استعمالیږي |
| پلاستیکی لوښي | • **اسانه کو ته کول**<br>• بیا بیا استعمال<br>• اسانه پاکول | • **قیمته وي**<br>• وارد شوی وي<br>• د استعمال څخه وروسته باید واپس شي | • **د کروندی څخه عمده فروش ته انتقال** |
| بوجی یا جالی ګانی | • ارزانه<br>• موجود<br>• د کچالو او پیازو لپاره ډیر ښه | • **د تخریب څخه نه ساتل کیږي** | • **د کروندی څخه عمده فروش ته انتقال** |

*Adapted from:Annex 4 Part 1- A Summary of Post Harvest Handling Issues in Dixie. 2005. Horticultural Marketing. Marketing Extension Guide 5. FAO, Rome.*

**ذخيره**

تولیدات د دواړو ،هم د لنډی او هم د اوږدی مودی لپاره ذخیره کیدی شي. د لنډی مودی ذخیره اکثراً استعمالیږي چه په بازاریابی کی انعطاف پذیری پیدا کړي ( د مثال په توګه کله چه د ترانسپورت یا انتقال انتظار ویستل کیږي)، او یا داچه اخیستونکی فوراً موجود نه وي. اکثره سبزیجات د خرابیدو یا خوساکیدو وړ دی او یواځی د یو څو ورځوی لپاره ساتل کیدی شي، مګر دا چه په یو کنترول شوی چاپیریال کی وساتل شي (8.2 جدول). په ندرت سره سبزیجات ددی لپاره ذخیره کیږي چه د بیو د لوړوالی لپاره وساتل شي، ځکه چه د سبزیجاتو ذخیره د هغوی کیفیت او ژوند مدت یی کموي. ذخیره کول قیمته دي، ځکه چه سبزیجات د ذخیری څخه بازار ته انتقال شي نو هلته باید د تازه سبزیجاتو سره رقابت وکړي.

